

د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د رياضي دښوونكي لارښود

## څلورم ټولګی




د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.

د رياضي دښوونکي لارښود

څلورم ټولګی





moe.curriculum@gmail.com




**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ریاضي د ښوونکي لارښود

## څلورم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش**

**مؤلفان**:

سر مؤلف میر نقیب الله د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف ریاست د ریاضي دیپارتمنت علمي غړی

سر مؤلف عبدالکبیر د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف ریاست د ریاضي دیپارتمنت آمر

غوشمه ګل د ښوونکي د روزنې د لوی ریاست د خدمت د ننه (داخل خدمت) برخې مؤسس مربي

ماه جبین د آریانا د لیسې ښوونکې

**ژباړونکی**:

پوهنیار عبیدالله ( صافی) د تعلیمی نصاب د پراختیاد پروژی د ریاضی د ډیپارتمنت مسؤل

د سرمؤلف مرستیال محمد یوسف باجوړی د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د ریاضي دیپارتمنت علمي غړی

**تصحیح کوونکي**:

| | |
|---|---|
| **اسلامي اساسات** | : دکتور محمد یوسف نیازی |
| **دودونه او فرهنګي ارزښتونه** | : محمد سهراب دیدار |
| **علمي محتوا** | : محمد یوسف باجوړی |
| **سیاسي** | : محمد سهراب دیدار |
| **ادبیات (املا او انشاء)** | : محمد سهراب دیدار |

**د تدقیق او تصحیح کمیټه**:

خوشحال انډیوال

سید محمود خلیق د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي غړی

**د څارنې کمیټه**:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**طرح او دیزاین**: احمد یما ( معصومی)

# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی | دا عزت د هـــر افغان دی
کور د سولې کور د تورې | هر بچي یې قهرمـــان دی
دا وطن د ټولو کـور دی | د بلوڅــــو د ازبکـــــو
د پښتــــون او هزاره وو | د ترکمنــــو د تاجکـــــو
ورسره عرب، ګوجــر دي | پامیــریان، نورستانیــــان
براهوي دي، قزلباش دي | هم ایمــــاق، هم پشـه یان
دا هیــــواد به تل ځلیږي | لکـــه لمـــر پر شنه آسمـان
په سینـــه کې د آسیــــا به | لکـــه زړه وي جــاویدان
نوم د حق مودی رهبـــــر | وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدایﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګانه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پرګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای تاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهی په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برې د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم چې له ټولو پوهو مولفینو او د پوهنې د وزارت له اداري او فني کارکوونکو څخه چې د دغه کتاب په چمتو کولو کې یې زیار ایستلی او له ټولو ملي او نړیوالو بنسټونو څخه چې د درسي کتابونو د چاپ او ویش په برخه کې یې مرسته کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# له ښوونکي سره څو خبرې

د رياضي د څلورم ټولګي د ښوونکي لارښود کتاب، د يوه کاري ټيم له خوا ليکل شوی دی چې په هغه کې د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف رياست د رياضي ديپارتمنت علمي غړو، د ښوونکو د روزنې رياست استازو او د ښوونځيو د ښوونکو استازو، د جاپان د جايکا د کميټې د ماهرينو تر نظر لاندې کار کړی دی.

دغه کتاب په دوه برخو کې چې يوه يې ددريم ټولګي موضوعګانوته يوه لنډه کتنه ده اوبله يې د درسي کتاب په ۳۹ لوستونو، پنځه څپرکو او ۱۴۴ درسي ساعتونوکې سمبال اوتنظيم شوی دی. دغه راز په هر څپرکي کې، د څپرکي د جوړښت نقشه راغلي ده چې د هماغه څپرکي د لوستونو تر منځ اړيکی رامنځته کوي. برسيره لدې ځينې لوستونه د کاري مخونو لارښود هم لري چې ښاغلی ښوونکي د هر څپرکي په پای کې کولای شي له بيلګې څخه په ګټه اخيستلو نورې ورته بيلګې جوړې او پر زده کوونکو يې وويشي.

او پدې ډول د زده کوونکو د وخت د خوشي تيريدو مخه دې ونيسي او زده کوونکو ته دې زيات مشق او تمرين ورکړي.

د دغه کتاب په ليکلو کې هڅه شوي ده چې ښوونکي ته ښه لارښوونه و شي او د هر درسي ساعت سره سم خپل ځان سمبال کړي.

د يادولو وړ ټکی دا دی چې د هر لوست لپاره د ښوونکي او زده کوونکو فعاليتونه روښانه شوي دي که چيرې ښوونکي او زده کوونکي اړوند فعاليتونه سرته ورسوي له شک پرته به لوست د زده کوونکو په ذهن کې ښه کيني. د لارښود په برابرولو کې هڅه شوې ده چې هغه غير مسلکي ښوونکي چې د څلورم ټولګي د رياضي مضمون لوست په غاړه اخلي په لوست ورکولو کې له ستونزو سره مخ نشي. هيله ده چې دغه کتاب د ښوونکي له خوا زده کوونکو ته ډير ګټور او ارزښتناک وګرزي.

په درناوی

د ښوونکی د لارښود مؤلفين

---

**يادونه:** هغه لوستونه چې په څو ساعتو کې تدريس کيږي. ښاغلی ښوونکی کولای شي چې له خپل ځانه ارزونه، د لوست لنډيز او کورنی دنده نومورو ساعتونو ته په نظر کې ونيسي.

# فهرست

| سرلیک | مخ |
| --- | --- |

# لومړی برخه




**ښاغلی ښوونکی!**

دغه برخه د تیر کال د ریاضي د لوستونو تکرار دی چې زده کوونکو د عددونو له مقامي قیمت، اټکل کولو، جمع، تفریق، ضرب او تقسیم سره تر سل زرو پورې بلد شوي دي. د نوموړو موضوګانو د لا ښې زده کړې لپاره یوځل بیا هغه تر څېړنې لاندې نیسو.

**د ښوونکي له پاره لازمي معلومات:**

د څلورم ټولګي په پروګرام کې یوازې درې طبقې (یویزه طبقه، زریزه طبقه، ملیونیزه طبقه) د عددونو د لوستلو او لیکلو په پروګرام کې شامله ده. مګر ډېرې نورې طبقې هم شته لکه ملیارد او نورې.

لومړی لوست

## سرلیک: د عددونو د مقامي قیمتونو تقویه کول تر سلو زرو پورې

**وخت: ۲ درسي ساعته او هرساعت ۴۵ دقیقي**

**مخ: (۱ – ۴)**

**موخې**

پوهنیزي : زده کوونکي د مقامی عددونو په قیمت وپوهېږی.

مهارتی: زده کوونکي وکولای شی چې عددونه ترسلو زرو پوری طبقه بندی کړی.

ذهنیتی: زده کوونکي هغه په خپل ورځنی چاروکې وکاروي.

**نوي اصطلاحات:** مقامي قیمت، طبقه بندي.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (پوښتنه او ځواب، یوکسیز کار، ډله ییزکار).

**د زده کړې مرستندوي توکي:** دعددونو چارت، چوت، او نور.

**دلوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | – سلام اچولو، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستلو، دکورني کار لیدلو او د تیر درس له ارزیابی څخه وروسته د نوي لوست په فعالیت پیل وکړي په دې ډول چې لومړی له تیر درس سره اړیکې ورکړئ او بیا نوي درس پیل کړئ. | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښیږي او په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکي سره مرسته کوي. |
| ۳۰دقیقې | – د (لومړي) مخ د طبقه بندی چارت د ټولګي مخې ته په دیوال وځړوئ، دطبقه بندئ جدول، د عدد رقمونه له اړوندو مرتبو سره شرحه کړئ.<br><br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• د (۴۵۳٦) عدد څو رقمي دی؟<br>• د ( ۹۹۹۹۹) عدد څو رقمي دی؟<br>• هره طبقه څو مرتبې لری؟ | – زده کوونکي دښوونکي څرګندونو ته غوږ ږدي او که پوښتنه ورسره پیدا شي پوښتنه کوي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي هرې پوښتنې ته ځواب ورکوي .<br><br>– یو زده کوونکی ښیي. |

| | | |
|---|---|---|
| | – د درسی کتاب د لومړی مخ (۱) مثال او د دویم مخ (۲۱) مثال د تختی پر مخ په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي هم په کې ونډه واخلي یعنی د مثال د حلولو په وخت له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترلاسه کړئ.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ.<br>او هر ډلي ته دنده ورکړی ترڅو د درسې کتاب د ( ۲ ) مخ فعالیتونه ترسره کړي.<br>د ډلیز کار په وخت کې له هری ډلي څخه څارنه وکړي تر څو تول زده کوونکي په فعالیت کې ونډه ولري.<br>په پای کې له هر ډلي څخه د هغه ډلی نماینده دې خپل ډلیز کار په تخته باندی تشریح کړی. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ځوابونه ورکوي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو کې په پوښتنو باندې کار کوي. په پای کې یویو تن له هرګروپ څخه خپل فعالیت دتختې پرمخ نورو ډلو ته شرحه کوي. |
| ۵دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې ۳۷۶۵۴۲ عدد څو رقمي دی. او څو طبقې لري؟<br>• څوک پورتنی عدد طبقه بندي کولای شي؟<br>• د عددونو طبقه بندي په ورځني ژوندانه کې څه ارزښت لري؟ | |
| ۵دقیقې | **دلوست لنډیز:**<br>تاسو پدې لوست کې ولوستل چې دعددونو طبقه بندي ډیره مهمه ده. او زده مو کړل چې هره طبقه درې مرتبې لري. طبقې او مرتبې خپل نومونه لري مثلاً:<br>د یویزو طبقه، د زریزو طبقه<br>دیویزو مرتبه، دلسیزو مرتبه، د سلیزو مرتبه، د زریزو مرتبه،د لس زریزو مرتبه، د سل زریزو مرتبه. | |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکی دې درسی کتاب د ۴ مخ پوښتنه په خپلو کتابچو کې ولیکي او حل دې کړئ.

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو لکه ( سلام ، احوال پوښتنه ، د ټولګی تنظیم، حاضری اخیستل د کورنی کارو نو لیدل او د تیر لوست ارزونه او دنوي لوست سره اړیکه ورکول له سرته رسولو وروسته د ددرسی کتاب د (۳) ، (۴) او د (۵) مخونو پوښتني په ترتیب سره په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنوپه حلولو کې له کومې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – دلومړینو فعالیتونو له سرته رسولو څخه د خوښی احساس کوي او نوي لوست ته ځان چمتو کوي.<br><br>– هغه زده کوونکي چې تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه پر تخته حلوي. |

## د (۱) لوست په اړه د پوښتنو ځوابونه

| پوښتني | ځوابونه |
|---|---|
| ۱) د پورته چوت اړوند عدد ولیکئ. | زریز یویز<br>۱ ۰ ۰ ۰ ۰ ۲ |
| ۲) دپورته شکل اړوند عدد ولولئ. | سل زرو او دو |
| ۳) د پورته شکل اړوند عدد طبقه بندي کړئ. | (جدول لاندې) |
| ۴) ووایئ چې نوموړی عدد څو رقمي دی؟ | نوموړي عدد شپږ رقمي دی. |
| ۵) نوموړی عدد په عبارت ولیکئ. | سل زره او دوه. |

| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۲ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱ |

# د (۱) لوست د پوښتنې ځوابونه

۲_ دیارلس زره دوه څلویښت:

| د یو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۲ | ۴ | ۰ | ۳ | ۱ | |

۳_ پنځه څلویښت زره یوسلو یو:

| دیو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۱ | ۰ | ۱ | ۵ | ۴ | |

۴_ اووه ویشت زره اووه سوه یو ویشت:

| د یو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۱ | ۲ | ۷ | ۷ | ۲ | |

۵_ یو دیرش زره اته سوه:

| د یو یزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۰ | ۰ | ۸ | ۱ | ۳ | |

**ارزونه:**

ښاغلی ښوونکی دي خپل ځان ډاډمن کړي چې:
- زده کوونکي د عددونوطبقه بندي کولای شي؟
- زده کوونکي په صحیح ډول اعداد لوستلای او لیکلای شي؟



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دي د لاندې هر شکل عددونه ولیکي:

یویز لسیز سلیز زریز لس زریز سل زریز

دیویزو طبقه | د زریزو طبقه

۱۰۰۰۰۰

یویز | زریز

۱۰۰۰۰۲

۱۲۳٤۲٤

۱٤۱۲۳٥

۱۰۳۱۲٥

۱۲۰۳۱۰

۱٤۱۲٥

۱٥٤۳۳۱



**تمرین**

د لاندې جملو مربوط عددونه و لیکئ.

| جملې | عددونه |
|---|---|
| دوه سوه اته څلویښت. | ۲۴۸ |
| دری زره اوه سوه څلورویشت. | ۳۷۲۴ |
| پنځلس زره نه سوه څلور. | ۱۵۹۰۴ |
| درویشت زره دوه سوه لس. | ۲۳۳۱۰ |
| دوه څلویښت زره یوسل او پنځه ویشت. | ۴۲۱۲۵ |
| یوسل او دري او یازره نهه سوه شپږ اتیا. | ۱۷۳۹۸۶ |
| دري سوه اووه اتیا زره دوه سوه اووه اتیا. | ۳۸۷۲۸۷ |
| پنځه سوه نه څلویښت زره دري سوه پنځوس. | ۵۴۹۳۵۰ |
| اووه سوه دوه نوي زره پنځه. | ۷۹۱۰۰۵ |

د >، < علامې په تشو ځایو نو کې کیږ دئ:

۴۷۳ < ۶.۲

۱۵۱۵ = ۱۵۰۰+۱۵

۲۱۰۱۴ < ۲۲۰۰۴

۱۲۵۳۷۶ > ۱۲۴۹۹۸

۲۷۰۳۲۰ < ۳۰۲۵۰۰

۴۸۰۰۲۹ > ۱۷۸۹۴۳

**دویم لوست:**

## سرلیک: اټکل کول

**وخت: ۱ ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**مخ: (٦)**

**موخه:**

- پوهنیزي: زده کوونکي دې د اټکل په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي د اټکل کولو مهارت چې حقیقت ته نږدي وي ترلاسه کړي.
- ذهنیتی : زده کوونکي له شمیرلو او اندازه کولو څخه د مخه د بیلابیلو شیانو د اټکل قابلیت ولري.

**نوي اصطلاحات:** اټکل

**د لوست میتود:** فعاله زده کړه (پوښتنه او ځواب، ډله ییزکار)

**د زده کړې مرستندوی توکي:** لوبیا،ګاټي، لرګي، او دشمیر وړ نور محیطي مواد او نور د شمېر وړ شیان، د کتاب د ۵ مخ چارت، د بیلابیلو شیانو چارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | - له سلام، احوال پوښتنې، تنظیم، حاضري اخیستلو، کورني کار له لیدلو او د تیر لوست له ارزیابی څخه وروسته د نوي لوست فعالیت پیل کړئ. | - زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښیږي. د ټولګي په تنظیم او د کورني کار په برخه کې له ښوونکي سره مرسته کوي. |
| ۳۰ دقیقې | - له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې:<br>• آیا کله مو د ځینو شیانو اټکل کړی دی؟<br>• آیا اټکل مونږ ته د شیانو شمیر په دقیقه توګه را ښیي؟<br>• کوم ډول اټکل ته ښه تخمین (اټکل) وایو؟<br><br>- د درسي کتاب د ( ٦) مخ مثال د مرستندونیه توکو په مرسته دتختې پرمخ حل کړئ. لکه تاسو کولای شي چې (۸۵) داورلګیت لرګي پر میز کیږ دئ او له (۴) زده کوونکو وغواړئ چې اټکلی شمیرېې ووایې<br>- دهغوی نومونه او ورته ویل شوي شمیر پرتخته ولیکئ بیا پنځم زده کوونکي ته ونډه ورکړئ ترڅو داورلګیت لرګي وشمیري او ووینې چې د کوم زده کوونکی ځواب حقیقی شمیری ته نژدی دی.<br>زده کوونکي په ډلو وویشئ.<br>او هر ډلي ته دنده ورکړی ترڅو د درسې کتاب د ( ۷ ) مخ فعالیتونه ترسره کړي. | - کیدای شي ځیني زده کوونکي ځواب ورکړي.<br>هو! کیدای شي ځیني زده کوونکي مثبت ځواب او یو شمیر منفي ځواب ورکړي.<br>پدې صورت کې ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اټکل تل د قیقه اندازه نه څرګندوي خو زیات تمرین مونږ حقیقت ته نږدې کوي.<br><br>- زده کوونکی د مثال حلولو کې فعاله ونډه اخلی.<br><br>- زده کوونکی په ډلیزکار کې فعاله ونډه اخلی او خپل نظرونه نورو سره شریک کوی. |

| وخت | فعالیت | |
|---|---|---|
| | د ډلیز کار په وخت کې له هرې ډلي څخه څارنه وکړي تر څو ټول زده کوونکي په فعالیت کې ونډه ولري.<br>په پای کې له هر ډلي څخه د هغه ډلی نماینده دې خپل ډله ایزکار په تخته باندی تشریح کړی. | |
| ۵ دقیقې<br><br><br><br><br><br><br><br><br>۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک اټکل کولای شي چې د ښونځي د ښوونکو شمیر څو دی؟<br>• څوک کولای شي له اټکل وروسته د هغوی دقیق شمیر معلوم کړي؟<br>• څوک د اټکل او ریښتیني شمیر تر منځ توپیر معلومولای شي؟<br>• آیا زده کوونکي د شیانو له اټکل څخه خوښي ښکاره پیدا کولای وي؟<br><br>**دلوست لنډیز:**<br>پدې لوست کې مو زده کړل چې د اټکل د قوي وده ډیره مهمه ده. کله چې د یو شي تخمین کوو تاسو زیات فکر وکړئ چې حقیقت ته نږدې شئ. ځکه ځیني وخت په ورځني ژوند کې نه شو کولای یو شی اندازه کړو بلکې ضروري ده چې د هغه شي د مقدار اټکل وکړو. که چیرې د اټکل زیات مشق وکړو په هماغه اندازه به زمونږ اټکل حقیقت ته نږدې وي. | |

**کورنۍ دنده:**

– په کورکې یو شی چې د اندازه کولو او شمیر لوورړوي وټاکی او اټکل کې کړئ. بیا وشمیری او وګوری چې ستاسی اټکل څومره سم دی.

# ددویم لوست د کاري مخ د پوښتنو ځواب

| پوښتنې | ځوابونه |
| --- | --- |
| ۱) اټکل وکړئ چې د ګوګړو په قطی کې د ګوګړو څو لرګکي دي؟ | فرضاً یو زده کوونکی ځواب ورکوي ۵۰ دانې. |
| ۲) د ګوګړو لرګکي (پلتی) یو، یو وشمیرئ؟ | له شمیرلو وروسته د لرګکیو شمیر ولیکئ. |
| ۳) آیا د ګوګړو د لرګکیو (پلتو) سره ستاسو اټکل مساوي دی. | امکان لري مساوي وي او یا توپیر ولري. ( د زده کوونکو وینا) |
| ۴) ستاسو د اټکل او د ګوګړو د لرګکیو ترمنځ توپیر څومره دی؟ | د اټکل او شمېرلو توپیر مو په یاد دی چې څو دی؟ |
| ۵) د ګوګړو د لرګکیو لس دانه یي بنډل جوړ کړئ وروسته وګورئ چې پاتي لرګکي له بنډل څخه څو داني کم دي. | د لسو لسو دانو په شمیر لرګکي وشمیرئ که چیرې له لسو څخه کم وي معلومه ده چې بنډل نه جوړیږي دغه داني د یوې، یوې دانې به توګه حسابیږي. |
| ۶) د لرګکیو شمیر په عدد سره ولیکئ. | کله چې د ګوګړو لرګکي مو وشمیرل د هغوی مقدار د لس دانه یي بنډلو به شکل او پاتي لرګکی یی په عدد ولیکئ. |

دریم لوست

## سرلیک: د عددونو جمع کول په عمودي او افقي ډول

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يي)**

**مخ: (۱ – ۴)**

**موخه:**

- زده کوونکي د عددونو د عمودی جمعی او افقی جمع په توپیر پوه شي.
- زده کوونکي وکولاي شي چې په سمه توګه د دووه یا څو عددنو د جمعي حاصل په افقي ډول سم په لاس راوړي.
- زده کوونکي په عمودي او افقي توګه د جمع د عملیو له سرته رسولو څخه خوشحاله شي.

**نوي اصطلاحات :** عمودي – افقي

**د لوست میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزکار، انفرادی کار، پوښتنه ځواب)

**د زده کړې مرستندوي توکي:** دلرګکیو بنډلونه، چوت، دعملیو له پاره برابر شوي چارتونه او نور.

**دلوست جریان (بهیر):**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، حاضري اخیستلو، کورني کار له لیدلو او د تیر لوست له ارزیابی څخه وروسته د نوي لوست په فعالیت پیل وکړئ پداسې ډول چې لومړی له تیرلوست سره اړیکی ورکړئ یعنی له نوي لوست سره د تیر لوست اړیکه ورکړئ<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ: | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښیږي د ټولګي په تنظیم او د کورني کار په راوړلو کې له ښوونکي سره مرسته کوي او د ښوونکي خرګندونو ته غوږ ږدي. |
| ۳۰ دقیقې | • که وغواړئ چې دوه عددونه په عمودي ډول جمع کړئ رقمونه څه ډول د یو بل لاندې لیکئ؟<br>• د عددونو جمع لومړی له کوم لوري څخه پیلیږي؟<br>• عددونه څرنګه په افقي ډول جمع کوئ؟<br>که چیرې د زده کوونکو ځوابونه سم نه وي تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>– د ( ۹ ) مخ لومړی او دویم مثال د تختی پرمخ داسې حل کړئ چې زده کوونکي يي په حل کې پوره ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشی. تر څو یو له بل سره په مشوره سره د درسي کتاب د ( ۱۰ ) مخ فعالیت سرته ورسوي<br>د ډله ایز په وخت کې په یوازی ډول هرې ډلې څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په فعالیت کې فعاله ونډه واخلي او که د فعالیت په سرته رسولو کې له کومی ستونزی سره مخامخ شوه لارښونه ورته وکړئ. | – زده کوونکي د هرې پوښتنې ځواب ورکوي .<br>– د مثالونو د حلولو په وخت کې د ښونکی پوښتنوته ځواب وايي<br>– په ډله ایزو کارونو کې فعاله ونډه اخلي او د ټولګیوالو سره خپل نظر شریکوي.<br>که په ډلیزکار کې له کومی ستونزی سره مخامخ شول له ښوونکی څخه مرسته غواړي. |

| ۵دقيقې | **ارزونه:**<br>• څوک ويلای شي چې د دوو عددونو په جمع کولو کې ورکړل شوي عددونه څه ډول ديوبل لاندې ليکو؟<br>• څوک لاندې عددونه جمع کولی شي؟ ۳۷۱۶۵ ، ۲۰۰۱ ، + ۳۷۹۰۵    ۵۹۰۱۰۴ + ۳۲۱۵۹ = ?<br>• دعددونو جمع کول په ورځني ژوند کې څه ګټه لري؟ |
|---|---|
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>تاسو پدې لوست کې پوه شوئ چې د دوو عددونو د جمع کولو لپاره لازمه ده چې لومړی بايد د جمع اجزاء دهغوی د مرتبو په رعايت کولو سره ديوبل لاندې وليکو. دا مو هم زده کړل چې دجمع عمليه له ښي خوا څخه کيڼې خواته سرته رسوو. او په دې هم پوه شوو چې دوه يا زيات عددونه څه ډول په سمه توګه جمع کړو. په عمومي توګه مو په دې لوست کې دجمع کولو دوه طريقې زده کړې چې يوه عمودي او بله يې افقي طريقه ده. |

**کورنۍ دنده:**

– د ۹۲۷۳۵ او ۱۱۵۲۰ عددونه په عمودي او افقي ډول جمع کړئ.

**دويم درسی ساعت ( ۴۵ دقيقه )**

| وقت | دښوونکي فعاليتونه | دزده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقيقه | – دلومړنيو فعاليتونه له سرته رسولو څخه وروسته د ( ۱۰) مخ پوښتني او د (۱۱) مخ عبارتي پوښتني د تختې پرمخ په زده کوونکو حل کړئ او د پوښتنو د حل په وخت کې که له کومې ستونزي سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – د ښوونکی د ټاکنی سره سم هريو په خپل وارسره کومه پوښتنه چې ورکړ شوی ده حلوي يې. |

# درسی کتاب د ( ۱۰ ) مخ د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل کړئ

۲۴۳۸<br>
۱۳۵۷<br>
\+ ۱۲۳۸<br>
۵ ۰ ۳ ۳

۳۱۷۲<br>
۱۵۹۲<br>
\+ ۴۲۶۱<br>
۹ ۰ ۲ ۵

۴۹۴۸<br>
۳۵۱۷<br>
\+ ۲۱۲۸<br>
۱۰ ۵ ۹ ۳

لاندې عددونه په افقی ډول سره جمع کړئ

| ۷۱۴۹ | + | ۱۵۰۳ | = | ۸ ٦ ۵ ۲ |
|---|---|---|---|---|
| ۹۰۱۷ | + | ۳۳۸۴ | = | ۱۲ ۴ ۰ ۱ |
| ۵۸۲۰۱ | + | ۳۱۰۵٦ | = | ۸ ۹ ۲ ۵ ۷ |

| ۹۱۰۳۲ | + | ۱۴۳۲۱ | + | ۲۸۱۵۰ | = ۱۳۳۵۰۳ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۷۰۰۴۰ | + | ۷۹۲۱۳ | + | ۳۵۰۴٦ | = ۱۸۴۲۹۹ |

## عبارتي پوښتني

۱- يو بزگر يو غويې په ۲۱۴۰۰ افغانيو واخيست او يوه غواېې په ۱۹۸۵۰ افغانيو واخيستله معلوم يې کړئ چې نو موړي بزگر څومره افغانۍ مصرف کړي دي؟

۲۱۴۰۰
+ ۱۹۸۵۰
---
۴۱۲۵۰

۲- د واکسيناتورانو يوه ډله په يوه اونۍ کې ۲۵۹۸۰ کوچنيان او په بله اونۍ کې ۲۸۶۴۵ کوچنيان واکسين کړي دي، معلوم کړئ چې نوموړې ډلې په دواړو اونيو کې څومره کوچنيان واکسين کړي دي؟

۲۵۹۸۰
+ ۲۸۶۴۵
---
۵۴۶۲۵

۳- يوه ښوال د(۶۴۹۷۵) افغانيو انگور او د (۲۰۵۹۰) افغانيو مڼې خرڅې کړي دي معلوم کړئ چې نوموړي ښوال د څو افغانيو ميوه خرڅه کړيده؟

۶۴۹۷۵
+ ۲۰۵۹۰
---
۸۵۵۶۵

۴- د يو ښوونځي د زده کوونکو شمير ۱۵۴۲ او د بل ښوونځي ۲۰۱۲ کسه دي. په دواړو ښوونځيو کې څومره زده کوونکي په زده کړه بوخت دي؟

۱۵۴۶
+ ۲۰۱۶
---
۳۵۶۲

۲) يو سړي د ۸۴۴۵ افغانيو غنم او د ۴۳۷۰ افغانيو يې وريجې واخيستې پيدا کړئ چې څو افغانۍ يې خرځ کړي دي؟

۸۴۴۵
+ ۴۳۷۰
---
۱۲۸۱۵

څلورم لوست:

## سرليک: د عددونو تفريق کول په عمودي او افقي ډول

**وخت: ۲ درسي ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**مخ: ۱۲**

**موخه:**

- پوهنيزي: زده کوونکي په عمودي ډول د پوښتنو حلول زده کوي.
- مهارتی : زده کوونکي دی تفريق حاصل په افقي ډول پيدا کړای شي.
- ذهنيتی : زده کوونکي دې په افقي او عمودي ډول د عددونو له منفي کولو سره مينه وښيي.

**نوی اصطلاحات:** (تفريق – عمودي – افقي)

**د زده کړې ميتود:**

فعاله زده کړه (ډله ييزکار، يوکسيزکار، پوښتنه او ځواب)

**د زده کړې مرستندوی توکي:** کتاب، تخته، تباشير، دتفريق د عمليي چارت او نور.

**د لوست بهير:**

| وخت | دښوونکي فعاليتونه | دزده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – د لومړنی فعاليتونوله تر سره کولو څخه وروسته<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br>• که وغواړئ دوه عددونه په عمودي ډول له يوبل څخه منفي کړئ عددونه څه ډول ديوبل لاندې ليکئ؟<br>• د منفي کولو عمليه لومړی له کوم لورې څخه پيل کيږي؟<br>• که چيرې وغواړئ دوه عددونه په افقي ډول له يوبل څخه منفي کړئ څه ډول عمل کوئ؟ | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښيږي د ټولګي په تنظيم او د کورني کار په راوړلو کې له ښوونکي سره مرسته کوي او د ښوونکي خرګندونو ته غوږ ږدي.<br>– زده کوونکي ځواب ورکوي. |
| ۳۰ دقيقې | – د درسی کتاب د ( ۱۲ ) مخ ( ۱ ) او دويم مثال د تختی پر مخ حل کړئ چې زده کوونکي يي هم په حلولو کې ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي په ډلو وويشئ او هرې ډلې ته دنده ورکړئ ترڅو د درسی کتاب د ( ۱۳ ) مخ فعاليت يو له بل سره په مشوره حل کړي.<br>– ډله ايز کار په وخت کې له هرې ډلې څخه څارنه وکړئ او که کومې ډلې ستونزه درلوه لارښوونه ورته کړئ. | زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ ږدي او د ورکړل شويو پوښتنو ځواب وايي.<br>– مثالونو په حلو لو کې فعاله ونډه واخلي او دښوونکي پوښتنوته ځواب ورکړي.<br>– ډله ايزو کارونوکې فعاله ونډه اخلي او د فعاليت د سرته رسولو په وخت کې خپل نظرونه د ټولګيوالو سره شريکوي. |

| وخت | |
|---|---|
| ۵دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د دوو عددونو په تفریق کې عددونه څرنګه دیوبل لاندې لیکو؟<br>• څوک لاندې دوه عددونه تفریق کولای شي؟ ۳۵۹۸۷ <br> − ۲۹۰۹۵      ۸۳۷۶۵۴ − ۵۴۳۲۹ = ?<br>• څوک ویلای شي چې د تفریق عملیه په ورځینو کارونو کې څه ګټه لري؟ |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>پدې لوست کې مو زده کړل چې:<br>۱− د دوو عددونو د تفریق په عملیه کې چې په عمودي ډول وي د ۴۳۲ عدد ته مفروق منه او د ۲۴۵ عدد ته مفروق او ۱۸۷ عدد ته د تفریق حاصل وایي.<br>(۳)(۱۲)(۱۲)<br>۴ ۳ ۲ ⟵ مفروق منه<br>− ۲ ۴ ۵ ⟵ مفروق<br>۱ ۸ ۷ ⟵ د تفریق حاصل<br>۲− که چیرې د تفریق په عملیه کې د مفروق منه کومه مرتبه د مفروق له مرتبې څخه کمه وي د مفروق منه له وروستی مرتبې څخه ورته پور کوو او وروسته یې تفریق کوو.<br>۳− په افقي ډول د تفریق په عملیه کې له ښي لوري څخه عملیه په داسې ډول چې د مفروق منه لومړی مرتبې څخه د مفروق لومړی مرتبه او د مفروق منه له دویمې مرتبې څخه د مفروق دویمه مرتبه تفریق کوو.<br>۴ ۳ ۲ − ۲ ۴ ۵ = ۱۸۷ |

**کورنۍ دنده:**

− له ۹۲۷۶۴ عدد څخه د ۵۸٦۷ عدد په عمودی او افقی ډول تفریق کړئ.

**دویمه درسی ساعت ( ۴۵ دقیقه )**

| وقت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | − دلومړنیو فعالیتونه له سرته رسولو څخه وروسته د درسی کتاب د ۱۳ او ۱۴ مخونو پوښتني د زده کوونکو په واسطه د تختی برمخ حل کړئ او که د پوښتنو په حل کې له کومې ستونزي سره مخ شول لارښوونه ورته و کړئ. | − هغه زده کوونکي چی د ښوونکی له خوا پرتخته د ښوښتنی د حل لپاره ټاکل کیږي. ورکړ شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د پوښتنو حل**

| | |
|---|---|
| ۶۷۳۶۲ | ۸۳۵۰۰ |
| − ۱۳۰۹۱ | − ۱۹۳۴۷ |
| ۵۴۲۷۱ | ۶۴۱۵۳ |

| | |
|---|---|
| ۹۳۵۴۰ | ۷۱۱۰۵ |
| − ۷۲۰۳۵ | − ۳۹۸۷۲ |
| ۲۱۵۰۵ | ۳۱۲۳۳ |

لاندې پوښتنې په افقي ډول سره حل کړئ؟

۴۹۴۵ - ۲۳۸۹ = ۲۵۵۶

۵۷۲۳ - ۳۷۹۸ = ۱۹۲۵

۶۳۴۵۹ - ۱۵۲۳۰ = ۴۸۲۲۹

۴۶۷۱۳ - ۲۸۴۵۲ = ۱۸۲۶۱

## عبارتي پوښتنې

۱- يوه سړي (**۲۳۴۷۵**) افغانۍ درلودې په (**۱۳۵۰**) افغانيو يې خوراکي مواد واخيستل، معلوم کړئ چې له نومړي سره څومره افغانۍ پاتې دي؟

$$
\begin{array}{r}
۲۳۴۷۵ \\
-\ ۱۳۵۰ \\
\hline
۲۲۱۲۵
\end{array}
$$

۲-د يوه لومړني ښوونځي د زده کوونکو د داخلې شمير (**۴۳۴۰**) تنه دي که له هغوی څخه (**۲۳۵۰**) تنه هلکان وي د دې ښوونځي د نجونو شمير به څو تنه وي؟

$$
\begin{array}{r}
۴۳۴۰ \\
-\ ۱۳۵۰ \\
\hline
۲۹۹۰
\end{array}
$$

۳- يو سړی د خپل کور د جوړولو لپاره (**۲۲۳۴۰**) دانو خښتو ته اړتيا لري که چيرې نومړي (**۱۵۲۹۰**) دانې خښتې برابرې کړې وي، معلوم کړئ چې نورو څو دانو خښتو ته اړتيا لري؟

$$
\begin{array}{r}
۲۲۳۴۰ \\
-\ ۱۵۲۹۰ \\
\hline
۷۰۵۰
\end{array}
$$

۴- په يوه کلي کې (**۲۴۷۲۰**) تنه کوچنيان بايد واکسين شي. که ګمارل شوی ګروپ (**۱۳۱۹۹**) تنه کوچنيان واکسين کړي وي څومره شمير کوچنيان پاتې دي چې واکسين شي؟

$$
\begin{array}{r}
۲۴۷۲۰ \\
-\ ۱۳۱۹۹ \\
\hline
۱۱۵۲۱
\end{array}
$$

پنځم لوست

## سرلیک: ضرب

**وخت: ۴ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**مخ: ۱۵**

**موخه:** چې زده کوونکي وکړای شي د ضرب عملیه په صحیح توګه سرته ورسوي.

**موخې ته د رسیدو څو مهم ټکي:**

- دانشی زده کوونکې دې د ضرب په مفهوم پوه شي.
- مهارتی زده کوونکي دې د ضرب عملیه سمه سرته ورسوي.
- ذهنیتی زده کوونکي دې د سوالونو د حل او امتحان څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاح ګاني:** عملیه، ضربي اجزاء، د ضرب حاصل.

**د زده کړې میتود:** فعال زده کړه، (ډله ییزکار، یوکسیز، سوال او ځواب)

**د زده کړې مرستندوي توکي:** د ضرب زباني جدول، د ضرب د عملیي چارت.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې، حاضری اخیستلو، کورني کار له لیدلو، او د تیر لوست له ارزیابی او اړیکو نیولو وروسته دې د نوي لوست فعالیت پیل کړئ.<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې:<br>• که چیرې وغواړئ دوه عددونه چې تر یوه زیات رقمونه ولري او په عمودي ډول یې ضرب کړئ څه ډول یې د یوبل لاندې لیکئ؟<br>• د ضرب عملیه څنګه او له کوم لوري پیلوئ؟<br>– که زده کوونکي ځواب ورنه کړي شو تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>– د درسی کتاب د (۱۵) مخ لومړی او دویم مثال په دې ډول په ترتیب سره پر تخته حل کړئ چې زده کوونکی هم په کې فعاله ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او هرې ډلې ته د (۱٦) مخ د فعالیت یوه پوښتنه ورکړئ تر څو یو دبل په مشوره یې حل کړي.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلوله نماینده ګانو څخه و غواړئ چې د خپلی ډلی د پوښتنی حل نوروته دتختی پرمخ توضیح کړي. | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښیږي. د ټولګي په تنظیم او د کورني کار په راوړلو کې مرسته کوي او د ښوونکي څرګندونو ته غوږ ږدي.<br>– زده کوونکی ځوابونه ورکوی.<br>– د مثال د حلولو په وخت کې د ښوونکی پوښتنوته ځواب وایي.<br>– په ډ لوکې یو له بل سره په مشوره هغه پوښتنه چې د ښوونکی له خوا ورکړل شوی ده حلوي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو دنمانده ګانو توضیحاتوته پاملرنه کوي. |

۵ دقيقې

**ارزونه:**

- څوک دا ? = ۳۵ + ۳۵ + ۳۵ + ۳۵ + ۳۵ + ۳۵ افاده د ضرب په شکل ليکلی شي؟
- څوک لاندې پوښتنې حل او امتحان کولای شي؟

|   | ۳۵۹ ، | ۱۶۰۷۹ |
|---|---|---|
| × | ۲۷ | ۱۵ |

- څوک ويلای شي چې د ضرب د عملې پوهه په ورځني ژوند کې څه ګټه لري؟

۵ دقيقې

**د لوست لنډيز:**

تاسو پدې لوست کې زده کړل که چيرې وغواړئ يو درې رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کړئ عمليه داسې پاې ته رسوو.

مثلاً: ۱۴۵ په دوه رقمي عدد (۱۲) کې ضرب کړی.

|   |   | ۱ | ۴ | ۵ | ← د ضرب لومړی جزء (برخه) |
|---|---|---|---|---|---|
| × |   |   | ۱ | ۲ | ← د ضرب دويم جزء (برخه) |
|   |   | ۲ | ۹ | ۰ |   |
| + | ۱ | ۴ | ۵ |   |   |
|   | ۱ | ۷ | ۴ | ۰ | ← د ضرب حاصل |

۱– لومړی د يويز رقم يعنې ۲ د ضرب د لومړی جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو يعنې په ۱۴۵ کې يې ضربوو.

|   | ۱ | ۴ | ۵ |
|---|---|---|---|
| × |   | ۱ | ۲ |
|   | ۲ | ۹ | ۰ |

۲– اوس دلسيز رقم يعنې (۱) له ښي لوري کيڼ خواته د ضرب د لومړی برخې په ټولو رقمونو يعنې ۱۴۵ کې ضربوو:

|   |   | ۱ | ۴ | ۵ |
|---|---|---|---|---|
| × |   |   | ۱ | ۲ |
|   |   | ۲ | ۹ | ۰ |
|   | ۱ | ۴ | ۵ |   |

۳– اوس دواړه حاصلونه سره جمع کوو د ضرب حاصل لاسته راځي.

|   |   | ۱ | ۴ | ۵ |
|---|---|---|---|---|
| × |   |   | ۱ | ۲ |
|   |   | ۲ | ۹ | ۰ |
| + | ۱ | ۴ | ۵ |   |
|   | ۱ | ۷ | ۴ | ۰ |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د لوست کتاب د (۱۴) مخ د عمودي شکل ضرب څخه یوه، یوه پوښتنه درې په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وقت | فعالیت های معلم | فعالیت های شاگردان |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۱٦) و (۱۷) مخ د هر یو له پوښتنو څخه په زده کوونکو د تختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حلو لوکې یې ستونزه درلو ده لارښوونه ورته وکړئ. | – کوم زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا د پوښتنې د حلولو لپاره تختی ته راغوښتل شوي وي ورکړ شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د کورنۍ دنده حل**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي او وروسته دې حل کړي.

۶۳۹ × ۷۰ = ۴۴۷۳۰

۷۰۸ × ۴۶ = ۳۲۵۶۸

۹۴۱ × ۲۵ = ۲۳۵۲۵

**پوښتني**

لاندې پوښتنې حل کړئ؟

۹۷۶۴ × ۸۵ = ۸۲۹۹۴۰

۵۵۰۴ × ۶۶ = ۳۶۳۲۶۴

۱۷۰۴ × ۱۳ = ۲۲۱۵۲

۶۹ × ۸۵ = ۵۸۶۵

۶۵۷۸ × ۷۲ = ۴۷۳۶۱۶

۱۸۴۳ × ۱۲ = ۲۲۱۱۶

۷۰۲۴ × ۶۲ = ۴۳۵۴۸۸

۵۶۷۰ × ۵۹ = ۳۳۴۵۳۰

۳۹۸۹ × ۷۵ = ۲۹۹۱۷۵

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- د یوه‌کلي اوسیدونکو د یوه محراب جومات د جوړولو لپاره مرسته وکړه     که چېرې د ذکرشوي کلي (۱۲۶۷) تنو دا ثواب ګټلی وي او د کلي هر تن **۲۵۰** افغانۍ ورکړې وي، معلوم کړئ چې د جومات له پاره څومره افغانۍ راټولې شوې دي؟

$$
\begin{array}{r}
۱۲۶۷ \\
\times \quad ۲۵۰ \\
\hline
۳۱۶۷۵۰
\end{array}
$$

۲- د واکسیناتورانو یو ګروپ په یوه ورځ کې (**۵۴۰**) تنه کوچنیان واکسین کوي معلوم کړئ، چې نوموړی ګروپ به په (**۱۵**) ورځو کې څو تنه کوچنیان واکسین کړي؟

$$
\begin{array}{r}
۵۴۰ \\
\times \quad ۱۵ \\
\hline
۸۱۰۰
\end{array}
$$

۳- یو بڼوال (**۲۴۵**) منه انګور پلوري که نوموړی بڼوال یو من انګور په (**۱۶۴**) افغانیو وپلوري، معلوم کړئ چې څو افغانۍ یې په لاس راوړي دي؟

$$
\begin{array}{r}
۲۴۵ \\
\times \quad ۱۶۴ \\
\hline
۴۰۱۸۰
\end{array}
$$

شپږم لوست

## سرلیک: د دوه رقمي او درې رقمي عددونو ویش په یو رقمي عدد باندې

**وخت: ۲ درسی ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**مخ: ۱۸**

**موخې**

- پوهنیزي: زده کوونکې د تقسیم په مفهوم باید پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي دې د تقسیم عملیه سمه اجراء کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکي وکولای شي چې د تقسیم سوالونه له حل وروسته امتحان کړاي شې؟

**نوي اصطلاحات:** مقسوم، مقسوم علیه، خارج قسمت، باقي

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او ځانګړی کار، پوښتنه او ځواب)

**د زده کړې مرستندوي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر، د تقسیم د عملي چارت، د ضرب زباني جدول.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې، حاضري اخیستلو، د کورني کار له لیدلو او د تیر لوست له ارزیابی او د نوي لوست سره د اړیکی ټینګولو وروسته درسې فعالیت پیل کړئ.<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• که وغواړئ چې دوه رقمي عدد په یو ر قمې عدد باندې وویشئ عملیه څه ډول پیل کوئ؟<br>• د تقسیم په عملیه کې څه وخت باقي وي او څه وخت نه وي؟<br>• که چیرې د تقسیم یوه پوښتنه له حل وروسته امتحان کړی څه کوئ؟<br><br>– د درسي کتاب د (۱۸) مخ لمړی مثال او د (۱۹) مخ دویم مثال تختې باندی داسی حل کړي چې زده کوونکی په کې فعاله ونډه ولري.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او هریوته د کتاب د (۱۹) مخ فعالیت ورکړئ تر څو هغوي يې يو د بل په مشوره حل کړي. د فعالیت د سرته رسولو په وخت کې له هرې ډلې څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په کې فعاله ونډه واخلي. د کار په پای کې د هرې ډلې نماینده راوغواړی تر څو خپل کار نووته توضیح کړی. | زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښیږي د ټولګي په نظم او د کورني کار په راوړلو کې مرسته کوي او د ښوونکي څرګندولو ته غوږ ږدي.<br>– زده کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکوې.<br>– زده کوونکي باید د ښوونکي د هرې پوښتنې په وړاندې فکر وکړي او بیا دي ځواب ورکړي.<br><br>– د مثال د حلولو په وخت تختی ته متوجه کیږي.<br><br>– په ټاکل شوو ګروپونو کې د ورکړ شوو پوښتنو په برخه کې یو له بله سره مشوره کوي او فعالیت سرته رسوی او دهر ګروپ نماینده د خپلو پوښتنو د حل د څرنګوالی په برخه کې د تختی پر مخ زده کوونکوته توضیحات ورکوي. |

**ارزیابی:**

– ښوونکی د ۲۴ | ۳۵۴ پوښتنې د تختې پر مخ لیکی.

۵ دقیقې

- څوک د تقسیم د اجزاوو نومونه اخلي؟
- څوک د تقسیم لاندې عملیه حلولی شي؟
- که چیرې د تقسیم پر عملیه و نه پوهیږو په ورځیني ژوندانه کې به څه ستونزې را منځته شي؟

**د لوست لنډیز:**

۵ دقیقې

```
مقسوم علیه⟵  ۹ | ۶۵  ⟵ مقسوم
خارج قسمت⟵  ۷ | ۶۳ –
               ۰۲  ⟵ (پاتې)
```

پورتني پړاوونه په لاندې ډول لنډوو:

- لومړی د لسیز مرتبه یعنی ۶ په نهو ویشو.
- که چیرې لسیز تر مقسوم علیه کوچنی و، یویز ورسره په پام کې نیسو.
- اوس ګورو چې ۶۵ د ۹ څو برابره دی د دې کار له پاره د ۹ ضرب زیاني وایو چې له ۶۵ څخه زیات نشي ۷ په خارج قسمت کې ټاکو ځکه چې ۶۳ = ۹ × ۷ کیږي. له تفریق کولو وروسته ۲ پاتې کیږي او پاتې عدد باید تل له مقسوم علیه څخه کوچنی وي.

- که چیرې مقسوم دري رقمي عدد وي لکه: ۵ | ۳۸۵

– لومړی غواړو چې د سلیز مرتبه یعنی ۳ پرپنځو وویشو.
– د سلیز مرتبه یعني ۳ تر ۵ کوچني دي.
– ۳۸ پر پنځو ویشو.
– د دغه کار له پاره د ۵ ضرب زباني وایو یعني ۳۵ = ۷×۵ تر مقسوم لاندې لیکو او منفي کوویې.

```
 ۳۸۵ | ۵
– ۳۵ | ۷
 ۰۳
```

– ۳ پاتې عدد تر پنځو کوچنی دی د یویز مرتبه یعني ۵ راکښته کوو.

```
 ۳۸۵ | ۵
– ۳۵↓ | ۷
 ۰۳۵
```

– اوس ۳۵ = ۵ × ۷ کیږي او ۳۵ ترې لاندې لیکو.

```
 ۳۸۵ | ۵
– ۳۵ | ۷۷
 ۰۳۵
–  ۳۵
```

څرنګه چې صفر باقي کیږي نو له دې امله د تقسیم عملیه پای ته رسیږي.

| ۳۸۵ = ۰ + ۵ × ۷۷ امتحان |
|---|

**کورنۍ دنده:**

- د درسی کتاب د (۲۰) مخ پوښتني په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۴۵دقیقه | - د مقدماتي فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د ( ۲۰ ) مخ پوښتني او د (۲۱ ) مخ عبارتي پوښتني د تختی پرمخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | - هغه زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا د تختی پرمخ د پوښتنې د حل لپاره را بلل کیږي ورکړ شوي پوښتنه دې په غور سره حل کړي. |

## د کورنۍ دنده حل :

زده کوونکی دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي او وروسته دې حل او امتحان کړي.

۴۲۵ | ۵
-۴۰ | ۸۵
۲۵
-۲۵
۰۰

۳۴۴ | ۶
-۳۰ | ۵۷
۴۴
- ۴۲
۲

۳۸۵ | ۵
- ۳۵ | ۷۷
۳۵
-۳۵
۰۰

## د پوښتنې حل

لاندې پوښتنې حل او امتحان يې کړئ.

۷۳۲ | ۸
-۷۲ | ۹۱
۱۲
- ۸
۴

۲۴۵ | ۴
-۲۴ | ۶۱
۵
- ۴
۱

۹۵۶ | ۷
- ۷ | ۱۳۶
۲۵
- ۲۱
۴۶
- ۴۲
۴

۳۲۸ | ۶
- ۳۰ | ۵۴
۲۸
- ۲۴
۴

۳۵۰ | ۵
- ۳۵ | ۷۰
۰

۲۹۴ | ۹
- ۲۷ | ۳۲
۲۴
- ۱۸
۶

۷۸۹ | ۶
- ۶ | ۱۳۱
۱۸
- ۱۸
۹
- ۶
۳

۶۱۷ | ۷
- ۵۶ | ۸۸
۵۷
- ۵۶
۱

۸۵۰ | ۹
- ۸۱ | ۹۴
۴۰
- ۳۶
۴

۶۹۰ | ۷
۶۳ | ۹۸
۶۰
- ۵۶
۴

۹۳۰ | ۵
- ۵ | ۱۸۶
۴۳
- ۴۰
۳۰
- ۳۰
۰۰

۱۱۱ | ۵
- ۱۰ | ۲۲
۱۱
- ۱۰
۱

۸۰۰ | ۱
-۸ | ۸۰۰
۰۰

۹۰۹ | ۸
-۸ | ۱۱۳
۱۰
-۸
۲۹
-۲۴
۵

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- د احمد د تاریخ کتاب ۱۶۵ مخونه لري که چېرې هغه له مهال ویش سره سم هره ورځ ۱۵ مخه مطالعه کړي معلوم کړئ چې احمد به نوموړی کتاب په څو ورځو کې تمام کړي؟

۱۶۵ | ۱۵
-۱۵ | ۱۱
۱۵
-۱۵
۰۰

۲- دولت غواړي چې ۴۰۰ کڅوړې کیمیاوي سره په ۲۰ تنو بزګرانو باندې په برابر ډول وویشي، معلوم کړئ چې هر بزګر ته څو کڅوړې رسیږي؟

۴۰۰ | ۲۰
-۴۰ | ۲۰
۰

۳- د کرهنې وزارت د منو ۳۵۰ اصلاح شوي نیالګي پر ۲۵ تنو بڼوالو باندې په برابر ډول ویشلې دي، هر بڼوال ته څو نیالګي ورکړل شوي دي؟

۳۵۰ | ۲۵
-۲۵ | ۱۴
۱۰۰
-۱۰۰
۰۰

۴- یوې خیریې موسسې ۲۰۰ قطۍ غوړي ۴۰ غریبو کورنیو ته په مساوي ډول وویشل.
هرې کورنۍ ته څو قطۍ غوړي ورکړل شوي دي؟

| ۲۰۰ | ۴۰ |
| --- | --- |
| -۲۰۰ | ۵ |
| ۰ | |

۵- یوه سړي ۵۰ غریبو زده کوونکو ته ۹۵۰ جلده کتابچې په مساوي ډول ویشلې دي.
هر زده کوونکي ته څو کتابچې ورکړل شوي دي؟

| ۹۵۰ | ۵۰ |
| --- | --- |
| -۵۰ | ۱۹ |
| ۴۵۰ | |
| - ۴۵۰ | |
| ۰۰۰ | |

## (۶) لوست دپای د پوښتنو ځواب

لاندې پوښتنه په پام کې ونیسئ.

$$\begin{array}{r|l} ۴۸ & ۱۴ \\ \hline \end{array}$$

| ځوابونه | پوښتنې |
|---|---|
| په پورتني پوښتنی کې ۴۸ ته مقسوم او ۱۴ ته مقسوم علیه وایي. | ۱) په راکړل شوی پوښتنه کې مقسوم او مقسوم علیه وښیئ. |
| ۴۸ \| ۱۴<br>− ۴۲ \| ۳<br>۶ | ۲) د تقسیم پوښتنه حل کړئ. |
| په حل شوې پوښتنه کې ۳ ته خارج قسمت او ۶ ته باقي وایي. | ۳) خارج قسمت ( دویش حاصل )او پاتې شوې عدد وښایاست. |
| د تقسیم پوښتنه امتحانوو یعني<br>باقي + خارج قسمت × مقسوم علیه = مقسوم<br>۶ + ۳ × ۱۴ = ۴۸<br>۶ + ۴۲ = ۴۸<br>۴۸ = ۴۸<br>څرنگه چي په عملیه کې ښی لوری له ۴۸ سره مساوي دی نو ویلای شو چې د تقسیم پوښتنه سمه حل شوي ده. | ۴) د دې له پاره چې پوه شو د تقسیم پوښتنه مو سمه حل کړی ده او که نه، څه باید وکړو؟ |

# لومړی څپرکی




**ښاغلو ښوونکو!**

دغه څپرکی له زده کوونکو سره مرسته کوي چې تر سل میلیارد پورې عددونه طبقه بندي کړي. ویې وایي او ویې لیکي.

په همدې ډول په دې څپرکي کې زده کوونکي په توسعوي شکل د عددونو لیکل زده کوي چې ځانګړی ارزښت لري.

**د درسي ساعتونو شمیر: ۸ درسي ساعتونه**

**د ښوونکی له پاره لازمي معلومات:**

- پوهیږئ چې په مرتبو کې د عددونو په لیکلو کې چې په لوستلو کې یې یادونه ونه شي یا په ژبه رانه شي صفر ایښودل کیږي.
- د یو عدد په لیکلو کې امکان لري چې د وروستۍ طبقې یا مرتبې کیڼ لوری ته بشپړې نه شي.

| لومړی طبقه (یویز) | | | دویم طبقه (زریز) | | |
|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
| ۵ | ۴ | ۰ | ۳ | ۲ | |

مثلاً: په پورتنۍ طبقه بندی کې د ۲۳۰۴۵ عدد په لیکلو کې د سلګونو مرتبې نه ویل کیږي په ځای یې صفر ایښودل کیږي دغه راز په دویمه طبقه کې د سل زریز په طبقه کې چې عدد نه لري پروا نه لري.

**لومړی څپرکی**

**اووم لوست**

## سرليک: د عددونو لوستل او ليکل تر مليارده پورې

**وخت: ۴ درسي ساعتونه (۴۵ دقيقه يي)**

**مخ: ۲۲**

**موخه:**

– پوهنيزي: زده کوونکي د عددونو په طبقه بندې کولو پوه شي.

– مهارتی : زده کوونکي ورکړل شوی عدد تر ميليارد پورې طبقه بندي کړي.

– ذهنيتی : که چيرې يو عدد په عبارت و ليکل شي هغه په رقم وليکلای شي.

**نوي اصطلاحات:** مليارد، لس مليارد، سل مليارد

**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ډله ييزکار او انفرادي کار، بحث کول )

**د زده کړې مرستندوي توکي:** چوت، له (۰ – ۹) څخه پورې رقمونه او د عددونو چارت.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې<br><br><br><br><br>۳۰<br>دقيقې | – له سلام، احوال پوښتنې، ټولګي تنظيم، حاضري اخيستلو او د کورنۍ دندې له ليدلو او د تير لوست له ارزيابی وروسته د نوي لوست په فعاليت پيل وکړئ په داسي ډول ډول چې له تير لوست سره تماس ونيسئ د نوي او تير لوست اړيکه ټينګه کړي.<br>– د زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• د مليون طبقه څو مرتبې لري؟<br>• د مليارد طبقه د څو مرتبو څخه جوړه شوي ده؟<br><br>– له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• له ښي لوري کيڼې خواته درې لومړي خاني څه نوميږي؟<br>• د دويمې طبقی، ۳ مرتبې د څه په نامه ياديږي؟<br>• هر طبقه څو مرتبې لري او هره مرتبه د څه په نامه ياديږي؟<br>د درسی کتاب د (۲۲) مخ د ياګرام چې لومړی مود دچارت پر مخ ليکلی دی د تختی پر مخ ټک وهی او د مرتبو او طبقو په برخه کې زده کوونکوته توضيحات ورکړئ.<br>– د درسی کتاب د (۲۳) مخ لومړی او دويم مثال د تختی | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښيږي او د کورني کار په ليدلو کې د ښوونکي له لارښودنې څخه خوښيږي.<br><br><br><br><br>– زده کوونکي ځواب وايی.<br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ ږدي که په ذهن کې ورسره پوښتنه پيدا شي پوښتنه کوي.<br><br>– له ښي څخه کيڼ لوري ته لومړنی درې خاني د يويز طبقه ده.<br>– دويمه طبقه  درې مرتبې د زريز وظيفه ده.<br>– هر طبقه درې مرتبې لري.<br>– د ښوونکی فعاليتونه په غور سره اوري او که کومه پوښتنه ورته پيدا کيږي پوښتنه کوي.<br>. |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| | پرمخ داسی حل کړئ چې زده کوونکي په کې پوره ونډه واخلي.<br>– زده کوونکی په مناسبو ډلو وویشئ تر څو د درسي کتاب د (۲۴) مخ فعالیت یو له بله سره په مشوره حل کړي.<br>– د ډله ایز کار په سرته رسولو کې له ډلو څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په فعالیت کې ونډه واخلي. | – د مثال د حلولو په وخت کې دهغه پوښتنو ځوابونه وایي چط له دوي څخه پوښتل کیږي<br><br>– په ډله ایز کارکې فعالله ونډه اخلي او د فعالیت د سرته رسولو په وخت د ډلې له غړو سره شریکوي. |

**۵ دقیقې**

**ارزونه:**

- څوک ویلای شي چې څرنګه کولای شو یو لوی عدد وواېو او ویې لیکو ؟
- څوک کولای شي ۶۵۴ ۵۷۴ ۹۲۳ عدد طبقه بندي کړي او وروسته یې وواېي؟
- څوک ویلای شي چې د عددونو طبقه بندي کول څه ګټه لري؟

**۵ دقیقې**

**د لوست لنډیز:**

تاسو زده کړل چې په طبقه بندی کې د عددونو په لیکلو او لوستلو کې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د عددونو درې درې رقمونه جلا کوو. او هغه عدد چې زمونږ موخه د هغه لوستل دي تر وروستي رقم پورې په طبقو جلا کوو.

په دویمه مرحله کې د هرې مرتبې په پام کې نیولو سره د طبقې نوم یادوو، او له کیڼ لوري څخه ښي لوري ته راکړل شوی عدد لولو. د بیلګې په توګه غواړو ۳۵۸۲۶۴۹۰۲۱۴۹ طبقه بندي کړو.

| د یویزو طبقه | | | د زریزو طبقه | | | د میلیون طبقه | | | د میلیارد طبقه | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یویز | لسیز | سلیز | یویز | لسیز | سلیز | یویز | لسیز | سلیز | یویز | لسیز | سلیز |
| ۹ | ۴ | ۱ | ۲ | ۰ | ۹ | ۴ | ۶ | ۲ | ۸ | ۵ | ۳ |

اوس کولای شو چې نوموړی عدد په لاندې ډول ولولو

۳۵۸ میلیارده ۲۶۴ میلیونه ۹۰۲ نهه سوه او دوه زره ۱۴۹ یو سلو نهه څلویښت

**کورنۍ دنده:**

– د (۲۷۸ ۳۴۹ ۵۰۱ ۲) عدد طبقه بندي کړئ او په عبارت ئي ولیکئ.

– د (یو میلیارد یو سلو دری میلیون پنځه سوه څلور ویشت زره نهه سوه اوه دیرش) عدد ولیکئ.

–

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د مقدماتي فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د (۲۵) مخ پوښتني پر زده کوونکو دتختی پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې د کومې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته کړئ. | – هغه زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا د تختی پرمخ د پوښتنې د حل لپاره را بلل کیږي ورکړ شوي پوښتنه دې په غور سره حل کړي. |

## د ( ۲۵ ) مخ د پوښتنو حل

### ۱- لاندیني عددونه په طبقو وویشئ او بیا يې ولولئ

| | |
|---|---|
| څلور سوه دوه دیرش | ۴۳۲ |
| نهه زره اوه سوه پنځه | ۹۷۰ ۵ |
| سل زره او لس | ۱۰۰۰ ۱۰ |
| اویازره څلور سوه دری څلویښت | ۷۰۴ ۴۳ |
| دوه سوه زره پنځه سوه اوه اتیا | ۲ ۰۰۵ ۸۷ |
| دري میلونه او سل | ۳۰۰۰ ۱۰۰ |
| نهه سوه پنځه څلویښت زره څلور سوه دیار لس | ۹۴۵ ۴۱۳ |
| پنځه سوه اوه څلویښت زره دوه سوه یو | ۵۴۷ ۲۰۱ |
| اوه میلونه یو سل او نهه پنځوس زره دری سوه یو څلویښت | ۷۱۵ ۹۳۴ ۱ |
| اوه میلونه اته سوه دیار لس زره څلور سوه دوه پنځوس | ۷۸۱ ۳۴۵ ۲ |
| دري ملیارده نهه میلونه او یوولس زره یو سلو پنځه لس | ۳۰۰ ۹۰۱ ۱۱۱۵ |
| اوه ملیارده څلور سوه څلور نوي میلونه پنځه سوه دري دیرش زره یوسلو شپږ ویشت | ۷۴۹ ۴۵۳ ۳۱۲۶ |
| اته ملیارده نهه پنځوس میلونه نهه سوه یو څلویښت زره یو سل او نهه اویا | ۸۰۵ ۹۹۴ ۱۱۷۹ |
| اوه ملیارد دری میلونه شپږ سوه دوه ویشت زره څلور سوه پنځه پنځوس | ۷۰۰ ۳۶۲ ۲۴۵۵ |
| پنځه ملیارده ، دیار لس میلونه نهه سوه زره او اوه سوه | ۵۰۱۳۹۰۰۷۰۰ |

## ۲ – لاندیني عددونه ولیکئ:

| | |
|---|---|
| څلور زره یو سلو شل | ۴۱۲۰ |
| دوه سوه دیرش زره نهه سوه | ۲۳۰۹۰۰ |
| یو میلون او دري سره اوه نوې زره څلور سوه دري ویشت | ۱۳۹۷۴۲۳ |
| دو لس میلونه دری سوه څلور اتیا زره دوه سوه پنځه پنځوس | ۱۲۳۸۴۲۵۵ |
| یوسل او پنځه څلویښت میلونه اوه سوه نهه شپیته زره نهه سوه څلور دیرش | ۱۴۵۷۶۹۹۳۴ |
| یو ملیارد او دوه سوه څلور دیرش میلونه پنځه سوه یو ویشت زره یوسلو یو دیرش | ۱۲۳۴۵۲۱۱۳۱ |

## ۳– لاندیني عددونه په طبقو وویشئ او بیا یې ولولئ.

| | | |
|---|---|---|
| څلور سوه اولس میلونه دری سوه پنځوس زره او څلور اویا | – | ۴۱۰۳۵۰۰۷۴ |
| شپږ میلونه او پنځه سوه دوولس زره څلور سوه اته اویا | – | ۶۵۱۲۴۷۸ |
| دوولس میلونه یوسلو او یودیرش زره څلور سوه پنځه لس | – | ۱۲۱۳۱۴۱۵ |
| یو ملیارد او اته سوه نو لس میلونه دوه سوه او دوه زره یوسل او دوه ویشت | – | ۱۸۱۹۲۰۲۱۲۲ |
| دوه ملیارده پنځه سوه شپږ ویشت میلونه دوه سوه دوه اویا زره اته سوه نهه ویشت | – | ۲۵۲۶۲۷۲۸۲۹ |

اتم لوست

## سرلیک: د عددونو ښودل په انکشافی ( توسعوی ) شکل

**مخ: ۲۶**

**وخت: ۳ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخه:** چې زده کوونکي وکړاي شي عددونه په توسعوي شکل سره وليکي او د هغو په مفهوم پوه شي.

**موخې ته درسیدو مهم ټکي:**

– زده کوونکي دیو عدد درقمونو دمقامي قیمت مفهوم په توسعوي شکل درک کړي.

– زده کوونکي دې هرعدد ته په توسعوي بڼه انکشاف ورکړي شي.

**اصطلاحات:** توسعوي، ارقام ( مقامي قیمت)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه ( پوښتنه اوځواب، ډله ییز کار، ځانګړی کار)

**د زده کړې مرستندوي توکي:** کتاب، تخته ، تباشیر، په توسعوی بڼه دعددونو چارت، لرګکي او د لرګکیو بنډلونه

**دلوست بهیر**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – له سلام، احوال پوښتنې،دټولګي له تنظیم، حاضري اخیستلو، کورني کار له لیدلو اودتېر لوست له ارزیابی څخه وروسته له تیرلوست سره اړیکي ټینګې او د نوي لوست فعالیت پیل کړئ.<br>• څوک ویلای شي شي چې د (۲۵۴۴) عدد د څو زریزو، څو سلیزو، څو لسیزو او څو یویزو څخه جوړ شوی دی؟<br>– دلوست د موضوع دروښانه کولو لپاره د درسي کتاب (۲٦) مخ د (۱) او (۲) مثالونه دتختی پر مخ په داسې ډول حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ. هر هرې ډلې ته وظیفه ورکړئ ترڅو د ( ۲٦ ) او ( ۲۷ ) مخونو فعالیت سرته ورسوي.<br>– د هرې ډلې له کار څخه څارنه وکړئ که ستونزه یي در لوده لارښوونه ورته وکړئ. د کار په پای کې د هر ګروپ نماینده راوغواړی تر څو خپل فعالیت نوروته واضح کړئ. | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښېږي له ښوونکي سره دټولګي په ترتیب او نظم کې مرسته کوي اوځان لوست ته تیاروې .<br>– زده کوونکي ځواب وائي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي د هرې یوې پوښتنې ته ځواب وایي.<br>– زده کوونکي په ګروپي کار کې فعاله ونډه اخلي او خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– د ګروپي کار په کولو کې که چیری د کومې ستونزي سره مخامخ کیږي له ښوونکی مرسته غواړي. د هرې ډلې نماینده خپل کار نوروته واضح کوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څو ک ویلای شي د۴۵۷۰۱ عدد له څولس زریزو، څوزریزو، څوسلیزو، څولسیزو اوڅو یو ګونو څخه جوړ شوی دی ؟<br>• څوک د۲۷۲۰۵ عدد په توسعوي شکل لیکلی شي؟<br>• څوک ویلای شي که چېرې یوعدد په توسعوي، شکل ولیکو په ورځنۍ ژوندکې څه ګټه رسوي؟ |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډيز:**<br>تاسو په هر لوست کې زده کړل چې یوعدد په پراخونکی شکل ولیکئ.<br>اوس د۷۴۲۲۵ عدد په توسعوي شکل پدې ډول لیکل کېږي .<br>۷۴۲۲۵ = + ۷۰۰۰۰ + ۴۰۰۰ + ۲۰۰ + ۲۰ + ۵<br>اوهم موزده کړل چې د ۴۳۲۰۹ له ۴ لس زریزو، ۳ زریزو، ۲ سلیزو، صفر لسیزو او ۹ یویزو څخه جوړ شوي دی. |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د کتاب د ۲۷ مخ پوښتنې خپلو کتابچوکې ولیکئ اوحل دې کړي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د مقدماتي فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسی کتاب (۲۸) مخ پوښتنې پر زده کوونکو باندی دتختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې د کومې ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا د تختې ته رابولی ورکړ شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## کورنۍ دنده

۱– د ۳۷۴۱ عدد جوړ شوی دی له:

۱ یوونه ، ۴ لسونه ، ۷ سلونه و ۳۰۰۰ لس زرونه

۲– د ۵۵۹۶۲ عدد جوړ شوی دی له:

یوونه، ۲ لسونه، ۶ سلونه، ۹ زرونه ۵ لس زرونه ۵

۳- لاندې عددونه په انکشافي (توسعوي) شکل سره و لیکئ.

۴۹۷۳۵ = ۴۰۰۰۰ +۹ ۰۰۰ +۷ ۰۰ + ۳۰+ ۵

۶۱۸۸۶۴ =۶۰۰۰۰۰ +۱۰۰۰۰ +۸ ۰۰۰ + ۸۰۰ + ۶۰ + ۴

۳۷۲۸۳۲۱۹ =۳۰۰۰۰۰۰۰ +۷۰۰۰۰۰۰ +۲۰۰۰۰۰ +۸۰۰۰۰ +۳۰۰۰+۲۰۰ +۱۰ +۹

۲۱۳۵۹۱۸۷۶ =۲۰۰۰۰۰۰۰۰ +۱۰۰۰۰۰۰۰ +۳۰۰۰۰۰۰ +۵۰۰۰۰۰ +۹۰۰۰۰ +۱۰۰۰ +۸۰۰ +۷۰ + ۶

۴- لاندې اړوند عددونه یې ولیکئ.

۳ زرونه ۷ سلونه او ۵ یووونه................۳۷۰۵.............

۹ لس زرونه ۸ زرونه ۲ سلونه او ۷ یووونه......۹۸۲۰۷..........

۵ سل زرونه ۲ لس زرونه ۳ زرونه او ۴ یووونه........۵۲۳۰۰۴.......................

## دپوښتنو حل

۱- د ۲۵۷۹۴ عدد جوړ شوی دی له:

| ۴ یوونه | ، | ۹ لسونه | ، | ۷ سلونه | ، | ۵ زرونه | و | ۲ لس زرونه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

۲- د لاندې هر یوه عبارت اړوند عدد ورته مخامخ ولیکئ.

- ۳ زرونه، ۵ سلونه، ۷ لسونه او ۹ یوونه ........۳۵۷۹............
- ۸ لس زرونه، ۲ زرونه، ۳ سلونه، ۲ لسونه او ۵ یوونه......۸۲۳۲۵.............
- ۲ لس زرونه، ۳ لس زرونه، ۷ زرونه، ۴ سلونه، ۸ سلونه، او ۹ یوونه.....۲۳۷۴۸۹......
- ۳ ملیونونه، ۴ سل زرونه، ۷ لس زرونه، ۵ زرونه، ۹ سلونه، ۲ لسونه او ۳ یوونه...........۴۷۵۹۲۳....

۳. لاندې عددونه په انکشافي ډول سره ولیکئ.

۴۹۷۶ = ۴۰۰۰ + ۹۰۰ +۷۰ + ۶

۲۸۵۴۱ = ۲۰۰۰۰ + ۸۰۰۰ + ۵۰۰ + ۴۰ + ۱

۵۳۰۴۹۲ = ۵۰۰۰۰۰ +۳۰۰۰۰ +۴۰۰ + ۹۰ + ۲

۷۲۵۶۸۷۳ = ۷۰۰۰۰۰۰ +۲۰۰۰۰۰ + ۵۰۰۰۰ +۶۰۰۰ + ۸۰۰ + ۷۰ + ۳

# دلومړۍ څپرکي دپای سر بیره پوښتنې او د هغو ځوابونه

| پوښتنې | ځوابونه |
|---|---|
| ۱– تراوسه پورې موخو طبقې پېژندلي دي دهرې طبقې نوم واخلئ؟ | څلور طبقې: دیویزو، د زریزو، دمیلیونو د میلیارد. |
| ۲– لاندې چوت په پام کې ونیسئ او اړوند عدد ئې ولیکئ؟ | عدد ۴۱۰۳۲۰۰ دی. |
| ۳– د ۳۰۰۰۵ عدد په توسعوي ( پراختیایی) شکل ولیکئ؟ | ۳۰۰۰۰ ۰++ ۰ + ۰ + ۵ |
| ۴– په عدد لیکلوکې څه وخت دمرتبونوم نه اخیستل کېږي؟ | هغه وخت چې په نوموړې مرتبه کې صفر راشي. |
| ۵– د۹۲۵۷۰۹ عدد په عبارت ولیکئ؟ | نهه سوه پنځه ویشت زره اوه سوه نهه |
| ۶– د۷۰۹، ۴۵۶۰، ۷۴۸۹۶ عددونه په عمودي اوافقي ډول سره جمع کړئ او د دواړو عملیو نتیجه پرتله کړئ ؟<br>۷۴۸۹۶ + ۴۵۶۰ + ۷۰۹<br>۷۰۹<br>۴۵۶۰<br>+ ۷۴۸۹۶ | افقي:<br>۷۴۸۹۶ + ۴۵۶۰ + ۷۰۹ = ۸۰۱۶۵<br>عمودي: ۷۰۹<br>۴۵۶۰<br>+ ۷۴۸۹۶<br>۸۰۱۶۵ |

# دویم څپرکی

**دڅپرکي جوړښت:**




**ګرانو ښوونکو!**

په دې فصل کې زده کوونکوله یوبل لاندې دارقامودمرتبو په پام کې نیولو سره دعددونو لیکل زده کړل اوپه اهمیت یې پوه شول. په دې سربېره دڅلورګونو عملیو په سرته رسولوسره دوه یا څولوی عددونه زده کوي اوهم دڅلورګونو عملیو دهرې یوې دامتحان کولو په برخه کې لازمه پوهه ترلاسه کوي.

**د ښوونکي لازمي معلومات:**

په دی څپرکي کې د جمع، تفریق، ضرب او تقسیم څلور ګونې عملیې او د دغو عملیو امتحانول لوستل کیږي.

**دا مو باید په یاد وي چې:**

هر کله د جمع په یوي عملیی کې د جمع اجزاوی سره مساوي وي. د کار د آسانتیا لپاره د جمعې عملیه په ضرب تبدیلوو.

**نهم لوست:**

## سرلیک: د عددونو جمع کول تر ملیارده پورې

**مخ : ۲۹**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه يي)**

**موخه:**

- پوهنيزي: زده کوونکي ترملیارد پورې د عددنو د جمع کولو په مفهوم پوه شي.
- مهارتی: زده کوونکي وتوانيزی چې تر ملیارد پورې عددونه سره جمع کړی.
- ذهنيتي: زده کوونکو تر ملیارده نورې د عددونو له جمع کولو څخه خوښحاله شي.

**نوي اصطلاحات:** میلیارد، لس میلیارد، سل میلیارد، ونډه او پانګه.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزکار، انفرادي کار، سوال اوځواب)

**د زده کړې درسی توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**دلوست بهیر**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې، دټولګي له تنظیم، حاضري اخیستلو، کورني کار له لیدلو او دتېرلوست له ارزیابی وروسته دې د نوي لوست فعالیت پیل کړئ.<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>● که چېرې وغواړئ دوه لوی عددونه سره جمع کړئ د هرې مرتبې او طبقې اړوند رقمونه په څو ډول د یو بل لاندې لیکئ؟<br>● که چېرې داکار ونه کړئ څه زیان لري؟<br>● د جمع عملیه له کوم لورې څخه شروع کوی؟<br>د درسي کتاب د ( ۲۹ ) او ( ۳۰ ) مخونو (۱) او (۲) مثالونه په ترتیب سره پرتخته حل کړئ او دمثالو نو د حلولو په وخت کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ په دې معنا چې په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابوته ترې په لاس راوړئ<br>– زده کوونکي په ډلووویشئ او له هرې ډلې څخه وغواړئ چې دیو بل په مشورې سره د (۳۰) مخ فعالیت سرته ورسوي.<br>د د ډله ایز کارونو څخه څارنه وکړئ ترڅو ډله ایز کار په سرته رسولو کې فعاله ونډه واخلي د ډله ایز کار په پای کې د هرې ډلې نماینده راوغواړی چې دخپل فعالیت کار نورروته واضیح کړئ. | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښېږي له ښوونکي سره په وروستیو فعالیتونو کې مرسته کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي هرې پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>– د مثالونو حل ته غور کوي او کومه پوښتنه چې ترې کیږي ځواب ورکوي.<br>په ګروپی کارونو کې فعاله ونډه اخلي او د فعالیت په سرته رسولو کې خپل نظرونه دخپل ګروپ له غړو سره شریکوي.<br>د ګروپونو د نماینده ګانو توضیح کولو په غور سره غوږږدي. |

۵ دقیقه

**ارزونه:**

- څوک کولای شي د۳۱۹۵۰٦۸۰ او۵۳۰۰۵۴۲ عددونه جمع کړی او دعملیې له سرته رسولود مخه رقمونه د مرتبو په پام کې نیولو سره یو د بل لاندې ولیکي؟
- څوک کولای شي پورتني عددونه په عمودي ډول جمع کړي؟
- څوک کولای شيووايي چې ترمیلیارد پورې دجمع عملیه مونږ ته څه ګټه لري؟

**د لوست لنډیز:**

تاسو په دې لوست کې زده کړل که چېرې د جمعې یوه پوښتنه دوه یا درې جزء ولري او وغواړو هغه جمع کړو لازمه ده چې اجزاوې د یویزو، لسیزو، سلیزو او... په پام کې نیولو سره په ترتیب ولیکو.

پدی ډول چې د جمع د دویم او دریم جزء د یویز مرتبې د جمع د لومړی جزء د یویز مرتبې لاندې، دجمع د دویم او دریم جزء لسیزمرتبې د جمع دلومړی جزء دلسیز مرتبی لاندې، په همدې ډول دسلیزو مرتبه دسلیزو د مرتبې لاندې، د زریزو مرتبه د زریزو د مرتبی لاندې او په پای کې د میلیون مرتبه دمیلیون لاندې او میلیارد د ملیارد لاندی لیکو او هغه جمع کوو.

مثلا درې عددونو په ترتیب سره لیکو

| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز | ملیون | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ۵ | ۴ | ۳ | | د جمع اول جزء |
| ۰ | ۴ | ۵ | ۹ | ٦ | ۳ | ۲ | | د جمع دویم جزء |
| ۱ | ۹ | ۲ | ۷ | ۵ | ۱ | | + | د جمع دریم جزء |
| ۰ | ۲ | ٦ | ۳ | ۸ | ۹ | ۵ | د جمع حاصل | |

– د جمع د دری واړو جزونو یویز جمع کوو که یې حاصل درلود هغه له لسیزو سره جمع کوو او که لسیز حاصل درلود له سلیزو سره یې جمع کوو او په همدې ډول دوام ورکوو.

بالاخره پوښتنه له غلطۍ پرته حلوو.

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکې دې د لوست د کتاب د ۳۰ مخ کورني دنده په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د (۳۰) او (۳۱) مخونو پوښتني پر زده کوونکو تختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې د کومې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته کړئ. | – هغه زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# د پوښتنو حل

۱- په لاندې جدول کې د هر ستون د عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۱۸۹۳۵۱ | ۷۳۸۰۵۹۳ | ۲ ۳۷۵ |
| ۳۱۰۵۷۸ | ۴۰۷۲ | ۵۴۰۰۹ |
| ۲۹۶۴ | ۵۱۷۲۶۸ | ۴۰۷۵۸۶ |
| ۲۵۰۲۸۹۳ | ۷۹۰۱۹۳۳ | ۴۶۳۹۷۰ |

۲- جمع يې کړئ:

جمع يې کړئ

۴۵۱۲۰۹
+ ۲۰۱۷۳۰
۶۵۲۹۳۹

۳۱۹۵۰۶۸
+ ۵۳۰۰۵۴۲
۸۴۹۵۶۱۰

۶۰۰۵۴۷۹۳
+ ۲۱۵۴۷۰۰۰
۸۱۶۰۱۷۹۳

۶۳۴۰۸۹۰۰
+ ۳۴۲۷۳۴۵۸
۹۷۶۸۲۳۵۸

۷۹۹۵۳۰۰۰
+ ۸۰۵۰۴۷۸۵
۱۶۰۴۵۷۷۸۵

۸۹۰۵۰۴۲۱۲
+ ۲۵۶۶۸۹۴۵۶
۱۱۴۷۱۹۳۶۶۸

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- که چېرې په تقريبي ډول د کابل د ښار نفوس (**۳۸۷۸۵۴۳**)، د مزار شريف دښار (**۱۸۲۴۳۷۵**) او د کندهار د ښار (**۱۹۶۵۷۸۶**) تنه وي د درې واړو ښارونو نفوس به څومره وي؟

```
   ۳۸۷۸۵۴۳
   ۱۸۲۴۳۷۵
+  ۱۹۶۵۷۸۶
-----------
   ۷۶۶۷۸۰۴
```

۲- د برېښنا د بند پر جوړولو لپاره د ننګرهار په ولايت کې **۱۲۹۳۷۲۲** افغانۍ او د برېښنا د بند په سامانونو **۲۱۴۲۳۸۴** افغانۍ خرڅې شوي دي د برېښنا د بند د جوړلو ټول خرڅ پيدا کړئ.

۳- دوو سوداګرو يوه فابريکه جوړه کړې ده چې د يوه پانګه **۷۰۱۴۵۰۰۰** افغانۍ او د بل پانګه **۵۹۸۹۲۰۰۰** افغانۍ ده. پيدا کړئ چې د فابريکې د جوړولو لپاره څومره لګښت شوی دی؟

```
    ۷۰۱۴۵۰۰۰
+   ۵۹۸۹۲۰۰۰
------------
   ۱۳۰۰۳۷۰۰۰
```

**۴**- دولت په دوو ولایتونوکې دوه روغتیایي مرکزونه جوړ کړي دي که چیرې د یوه روغتیایي مرکز په جوړولو کې **۱۲۳۸۴۵۰۰** افغانی او د دویم روغیتایي مرکز په جوړولو کې **۱۱۹۹۲۳۵۰** افغانی لګښت شوي وي ټول لګښت پیدا کړئ.

$$\begin{array}{r} ۱۲۳۸۴۵۰۰ \\ +\ ۱۱۹۹۲۳۵۰ \\ \hline ۲۴۳۷۶۸۵۰ \end{array}$$

**۵**- د پوهنې وزارت په یوه ولایت کې د دوو ښوونځیو لپاره ودانۍ جوړې کړي دي که چیرې پر یوې ودانۍ **۱۳۹۸۸۲۰۰** افغانی او دویمې ودانۍ **۱۴۱۷۹۱۵۰** افغانۍ لګښت شوي وي، د دواړو ښوونځیو د ودانیو لګښت پیدا کړئ.

$$\begin{array}{r} ۱۳۹۸۸۲۰۰ \\ +\ ۱۴۱۷۹۱۵۰ \\ \hline ۲۸۱۶۷۳۵۰ \end{array}$$

لسم لوست

## سرلیک: د جمعې د عملیې ازمېښت (امتحان)

**مخ: ۳۳**

**وخت: ۲ درسي ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:**

- پوهنیزي: زده کوونکي د جمع د عملیي د امتحان کولو مفهوم درک کړي.
- مهارتی : زده کوونکي په اسانی سره وکولای شي د جمع یوه پوښتنه، له حل وروسته امتحان کړي.
- ذهنیتی : زده کوونکي د جمع عملیي د امتحان کولو په ګټه او ارزښت پوه شي .

**نوي اصطلاحات:** (عملیه، امتحان)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز کار، ځانګړی کار، پوښتنه او ځواب)

**د زده کړې مرستندویه توکي:** چارت کتاب،

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې، دټولګي له تنظیم ،حاضري اخیستلو اود کورني کار له لیدلو وروسته د نوي لوست په فعالیت پیل وکړئ پداسې ډول چې لومړی د تېرلوست سره تماس ونیسئ او د تېرلوست اړیکه له نوي لوست سره ورکړئ. | زده کوونکي د احوال پوښتنې له امله له ښوونکي څخه خوښېږي د کورني کار او د ټولګي په تنظیم کې مرسته کوي. |
| ۳۰ دقیقې | – له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• د دې له پاره چې زده کوونکي پوه شي چې پوښتنه یې سمه حل کړې او که نه باید څه وکړي؟<br>• د جمع عملیي د امتحان کولو لپاره کومه بله عملیه ضروري ده.<br>– که چېرې زده کوونکو ځواب ورنه کړای شو له هغوی سره مرسته وکړئ.<br>– د دې لپاره چې زده کوونکي د جمعی د عملیې په امتحانو لوښه وپوهیږي د درسي کتاب د ( ۳۳ ) مخ مثال د تختی پر مخ حل او امتحان یې کړئ په دې ډول چې د مثال په حلولو کې زده کوونکي فعاله ونډه ولري.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او هر ګروپ ته لارښوونه وکړئ تر څو یو له بل سره په مشوره د د درسی کتاب د (۳۳) مخ فعالیت سرته ورسوي او د ډله ایز کار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په فعالیت کې فعاله ونډه واخلي. | – زده کوونکی هرې یو پوښتنی ته ځواب ورکوی.<br>– د مثال حلولو او امتحانو لوته په غور سره پام کوي او دښوونکی پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>– په ډله ایز فعالیتونوکې فعاله ونډه اخلي او خپل نظرونه ډلې د غړو سره شریکوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک د جمعې د عملیې طریقه ویلی شي؟<br>• آیا زده کوونکي د ۳۱۹۵۰۶۸ او ۵۳۰۰۵۴۲ عددونه د تر عملیي د مخه د ارقامو د مرتبو په پام کې نیولو سره یو د بل لاندې لیکل شي؟<br>• څوک کولای شي نوموړي عددونه په عمودي شکل جمع کړي؟<br>• څوک د ۹۰۰۴۱، ۳۲۵۷۶ دوه عددونه سره جمع کولای شي؟<br>• پورته پوښتنه له حل وروسته امتحان کړئ. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>تاسو پدې لوست کې زده کړل که چېرې د جمع یوې حل شوې پوښتنې سره مخامخ شئ یا تاسو د جمع عملیه اجراء کړئ او دا فکر درسره پیداشي چې سمه ده که نه ؟ مثلاً :<br>۵۴۷۹۶ ← د جمع لومړی جزء<br>+ ۳۲۰۰۱ ← د جمع دویم جزء<br>۸۶۷۹۷ ← د جمع حاصل<br>د باور د ترلاسه کولو له پاره هغه په لاندې ډول امتحانوو:<br>– د جمع دویم جزء (برخه) له لومړی جزء سره له کښته خوا څخه جمع کوو مثلاً<br>۵۴۷۹۶ ← د جمع لومړی جزء<br>+ ۳۲۰۰۱ ← د جمع دویم جزء<br>۸۶۷۹۷ ← د جمع حاصل<br>– د جمع له حاصل څخه د جمع یو جزء تفریقوو که چیرې د جمع بل جزء تر لاسه شو پوښتنه سمه حل شوي ده او که نه سمه ده: ۸۶۷۹۷ ← د جمع حاصل<br>– ۳۲۰۰۱ ← د جمع دویم جزء<br>۵۴۷۹۶ ← د جمع اول جزء |

**کورنۍ دنده:**

د کتاب د ۳۴ مخ کورني ډندی په خپلو کتابچوکې په کورونوکې حل کړئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړینو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب (۳۴) مخ پوښتني هره یوه د زده کوونکو په واسطه د تختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې د کومې ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته کړئ. | – هغه زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا د پوښتنې د حل لپاره د تختی مخ ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

۶۶۵۳۰۵۰۴۱
+ ۱۰۱۵۲۳۷۰۰
۷۶۶۸۲۸۷۴۱

۸۹۵۹۰۰۴۱۰
+ ۲۱۲۶۳۲۵۷۶
۱۱۰۸۵۳۲۹۸۶

۴۲۷۹۶۵۰۰۰
+ ۵۳۲۳۰۰۷۶۵
۹۶۰۲۶۵۷۶۵

۵۰۰۵۳۰۲۲۴
+ ۳۱۲۱۱۴۷۸۹
۸۱۲۶۴۵۰۱۳

۲۴۹۹۰۱۴۸۷
+ ۴۲۰۰۱۳۶۵۴
۶۶۹۹۱۵۱۴۱

۴۱۶۵۴۲۰۱۰
+ ۳۲۱۹۱۳۵۲۵
۷۳۸۴۵۵۵۳۵

۵۴۳۰۰۴۵۷۶
+ ۳۱۲۱۲۹۰۰۰
۸۵۵۱۳۳۵۷۶

۵۰۷۷۰۸۹۴۰
+ ۲۲۸۹۲۳۵۸۱
۷۳۶۶۳۲۵۲۱

۱۲۳۹۰۱۴۳۷
+ ۴۲۰۰۱۳۶۰۴
۵۴۳۹۱۵۰۴۱

۸۱۶۵۴۲۰۰۰
+ ۵۲۱۹۱۳۵۲۵
۱۳۳۸۴۵۵۵۲۵

یوولسم لوست

## سرلیک: د عددونو تفریق تر ملیارده پورې

**مخ: ۳۵**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یې)**

**موخې**

- دانشي: زده کوونکي د عدد نو تفریق تر ملیارد پورې په مفهوم پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکي و توانیزی چط د عدددونو تفریق تر ملیارده پورې عملیه سرته ورسوی.
- ذهنيتي: زده کوونکي په سمه توګه د تفریق د عملیې د سرته رسولو څخه خوندو اخلي.

**نوي اصطلاحات:** میلیارد، دتفریق عملیه، مفروق منه، مفروق، تفریق حاصل.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزکار، انفرادي کار، سوال او ځواب)

**د زده کړې درسی توکي:** تخته، تباشیر، درسی کتاب

**دلوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له تر سره کولو څخه وروسته<br><br>– له زده کوونکوڅخه پوښتنه وکړئ:<br>• که چیرې وغواړو چې دوه لوی عددونه له یو بل څخه تفریق کړو د هرې مرتبې او طبقې اړوند رقمونه څه ډول د یوبل لاندې لیکو؟<br>• د تفریق عملیه له کوم لورې پیل کیږي؟ | – زده کـــوونکي له احوال پوښـــتنې سره د خـــوښی احساس کـــوي د کورنی کار په راوړلو او د ټـــولګي په تـــنظیم کې مرسته کوي.<br><br>– زده کوونکي ښوونکي ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | – د درسي کتاب د (۳۵) مخ لومړی او دویم مثالونه او د (۳٦) مخ دریم مثال پرتخته حل او امتحان یې کړئ په یاد ولري چې د مثالونو په حلولو او امتحانو لوکې زده کوونکي فعاله ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او هرې ډلې ته لارښوونه وکړي چې یو له بل سره په مشوره د درسي کتاب د (۳٦) مخ فعالیت سرته ورسوي. ډله ایز کار دکولو په وخت کې له ګروپونو څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کووونکي په فعالیت کې برخه واخلي. | – د مثالونو حل او امتحانولو ته په غور سره پام وکړئ او دښوونکی پوښتنوته ځوابونه ووایي.<br>– په ډله ایزو فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي او خپل نظرونه د ډلې له غړو سره شریکوي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک لاندې پوښتنه حل کولای شي؟<br>٦٧۴۳۲۱۰۹<br>– ۴۳٦۲۱۸۴۱<br>۲۳۸۱۰۲٦۸ | |

- څوک ویلای شي که چېرې مونږ د لویو عددونو د تفریق په عملیه پوه نه شو په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟
- څوک د تفریق د یوې عملیې د اجزاوو نومونه اخیستلای شي؟

**د لوست لنډیز:**

د دې له پاره چې دلویو عددونو په تفریق کې له تېروتنو سره مخامخ نشو لازمه ده چې:

۱۰ دقیقه

– د یویز مرتبې مفروق (کوچنی عدد) د یویز مرتبې د مفروق منه ( لوی عدد) لاندې لیکو.

– د لسیز مفروق عدد د لسیز مفروق منه لاندې لیکو.

– د سلیز مفروق عدد د سلیز مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د زریز مفروق عدد دزریز مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د لس زریز مفروق عدد د لس زریز مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د سل زریز مفروق عدد د سل زریز مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د میلیون مفروق عدد د میلیون مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د لس میلیون مفروق عدد د لس میلیون مفروق منه عدد لاندې لیکو.

د سل میلیون مفروق عدد د سل میلیون مفروق منه عدد لاندې لیکو.

– د میلیارد مفروق عدد د میلیارد مفروق منه عدد لاندې لیکو.

او ورروسته د تفریق عملیه سرته رسوو لاندې مثال ته وګورئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز | میلیون | لس میلیون | سل میلیون | میلیارد | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ | ۰ | ٦ | ۷ | ۵ | ۴ | ۳ | ۱ | ۸ | ۴ | مفروق منه |
| ۴ | ۸ | ۵ | ۳ | ۲ | ٦ | ۹ | ۷ | ۳ | ۲ | – مفروق |
| ۸ | ۱ | ۰ | ۴ | ۳ | ۸ | ۳ | ۳ | ۴ | ۲ | د تفریق حاصل |

– د تفریق په عملیه کې د جدول رسمول شرط نه دی خویوازې عددونه داسې لیکو چې لږه فاصله ولري چې مرتبې یود بل لاندې راشې که چېرې مرتبې یو د بل لاندې ونه لیکل شي تېروتنه رامنځته کیږي.

–دتفریق عملیه همیشه له ښي لوری څخه سرته رسیږي.

– که چیرې په کومه مرتبه کې دمفروق منه رقم له مفروق څخه کوچنی وي له ورروستۍ مرتبې (کیڼې خوا) څخه ورته یور اخلو او دتفریق عملیه سرته رسوو.

## کورنۍ دنده

د لاندې چوکات د تفریق پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ۳۹۷۶۵۴۷۸۵۳ | ۶۴۷۸۲۶۵۰۴۹ |
| مفروق | - ۱۹۸۶۱۲۵۶۴۰ | -۵۰۷۱۲۹۳۹۵۱ |
| حاصل تفریق | | |

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۳۷) ، ۳۸ او ۳۹ مخونو هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حل کې له ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# د پوښتنو حل

**۱–** (**۵۱۴۳۲۰۱۲۵**) عدد له (**۹۱۲۵۲۹۷۰۴**) عدد څخه تفریق کړئ.

**۲** – د تفریق لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۵۴۳۰۲۱۶۶۹ | ۶۰۷۱۰۵۹۲۳ |
| – ۲۹۸۵۰۳۴۱ | – ۱۴۳۵۰۸۷۶ |
| ۵۱۳۱۷۱۳۲۸ | ۵۹۲۷۵۵۰۴۷ |

| | |
|---|---|
| ۲۹۰۰۳۵۴۱۷۵ | ۴۸۱۳۴۵۷۶۰۲ |
| – ۱۵۶۷۲۱۹۰۴۰ | – ۲۳۷۹۶۲۳۵۸۴ |
| ۱۳۳۳۱۳۵۱۳۵ | ۲۴۳۳۸۳۴۰۱۸ |

| | |
|---|---|
| ۵۶۰۲۱۵۴۸۴ | ۷۸۹۶۵۴۰۲۱ |
| – ۱۲۵۳۶۴۰۰۰ | – ۱۵۲۳۴۰۰۱۲ |
| ۴۳۴۸۵۱۴۸۴ | ۶۳۷۳۱۴۰۰۹ |

۳- د لاندې هریو ستون د تفریق حاصل په لاس را وړئ.

| | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | ۳۹۷۶۵۴۷۸۵۳ | ۶۴۷۸۲۶۵۰۴۹ |
| مفروق | – ۱۹۸۶۱۲۵۶۴۰ | – ۵۰۷۱۲۹۳۹۵۱ |
| حاصل تفریق | ۱۹۹ ۰۴۲ ۲۲۱۳ | ۱۴۰۶۹۷۱۰۹۸ |

تفریق یې کړئ:

۹۶۸۴۰۰۶۳۲
− ۷۲۱۱۹۷۴۴۳
۲۴۷۲۰۳۱۸۹

۷۳۹۰۲۵۳۴۱
− ۳۸۵۰۰۴۲۱۳
۳۵۴۰۲۱۱۲۸

۸۵۹۳۷۸۳۷۰
− ۵۴۳۵۰۰۸۴۲
۳۱۵۸۷۷۵۲۸

۸۴۳۴۵۹۰۶۲
− ۶۰۳۸۳۶۹۰۱
۲۳۹۶۲۲۱۶۱

۵۳۵۷۰۶۸۴۳۲
− ۴۱۴۶۹۳۰۷۸۰
۱۲۱۰۱۳۷۶۵۲

۲۶۲۷۵۶۰۱۰۴
− ۱۳۹۴۰۱۲۳۵۸
۱۲۳۳۵۴۷۷۴۶

۹۹۰۱۱۴۵۰۷۳
− ۷۰۸۴۵۶۷۱۰۴
۲۸۱۶۵۷۷۹۶۹

۷۶۷۳۵۴۰۹۱۸
− ۶۵۹۸۷۶۶۳۷۵
۱۰۷۴۷۷۴۵۴۳

۳۵۳۰۰۰۶۷۹۸
− ۱۴۴۹۷۸۸۵۳۶
۲۰۸۰۲۱۸۲۶۲

## د عبارتي پوښتنې حل

۱- یو بزګر د خپلو حاصلاتو د خرڅولو له پلوه (۱۳۸۴۵۰۰) افغانۍ په لاس راوړې دي او له دې افغانیو څخه یې یوه عراده تراکتور په (۵۳۸۲۱۴) افغانۍ واخیست، معلوم کړئ چې څومره افغانۍ ورسره پاتې دي؟

$$
\begin{array}{r}
۱۳۸۴۵۰۰ \\
-\ ۵۳۸۲۱۴ \\
\hline
۸۴۶۲۸۶
\end{array}
$$

۲- دوه تنه سوداګر په یوه شرکت کې چې سرمایه یې (۳۱۹۶۵۰۰۰) افغانۍ ده شریک دي که چېرې د یوه برخه (۱۶۰۸۳۹۰۰) افغانې وي، دبل برخه یې معلومه کړئ؟

$$
\begin{array}{r}
۳۱۹۶۵۰۰۰ \\
-۱۶۰۸۳۹۰۰ \\
\hline
۱۵۸۸۱۱۰۰
\end{array}
$$

۳- د اوبو د برېښنا بند د جوړولو لپاره (۲۴۷۶۹۵۰۰۰۰) افغانۍ سنجول شوي دي که ددې بند د جوړولو لپاره تر اوسه پورې (۱۳۲۰۵۰۰۶۲۲) افغانی خرڅې شوي وي، د بند د جوړولو لپاره نور څومره افغانیو ته اړتیا ده؟

$$
\begin{array}{r}
۲۴۷۶۹۵۰۰۰۰ \\
-۱۳۲۰۵۰۰۶۲۲ \\
\hline
۱۱۵۶۴۴۹۳۷۸
\end{array}
$$

۴- په پاخه ډول د یو دوه پوړیز جامع جومات د جوړولو لپاره د یوه کلي خلکو (۱۲۵۴۶۲۱) افغانی راټولې کړې دي او د جومات د جوړولو لپاره (۵۲۵۴۷۳۹) افغانیو ته اړتیا ده، پیدا کړئ چې څومره افغانۍ کمې دي؟

$$
\begin{array}{r}
۵۲۵۴۷۳۹ \\
-\ ۱۲۵۴۶۲۱ \\
\hline
۴۰۰۰۱۱۸
\end{array}
$$

دولسم لوست:

## سرلیک: د تفریق د عملیې امتحان

**مخ: ۴۰**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه(۴۵دقیقه یي)**

**موخې:**

– پوهنیزې: زده کوونکي دې د تفریق د عملیې امتحان په مفهوم پوه شي.

– مهارتي: زده کوونکي وتوانیږي چې د تفریق پوښتنه له حل وروسته امتحان کړی شي.

–ذهنیتي: زده کوونکي دتفریق دعملیې دامتحان په اهمیت پوه شي.

**نوي اصطلاحات:** د امتحان عملیه، مفروق منه، مفروق، دتفریق حاصل.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزکار، انفرادي کار)

**د زده کړې درسی توکي:** کتاب ،کتابچه، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – دلومړنیو فعالیتونو له تر سره کولو څخه وروسته<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br>• د دې له پاره چې پوه شو چې پوښتنه سمه ده که نه، څه وکړو؟<br>د (۴۰) مخ لومړی مثال او د (۴۱) مخ دویم مثال په دې ډول د تختې پر مخ حل کړي چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه واخلي بیا دا پوښتنې امتحان کړئ او په امتحانولو کې هم د زده کوونکو ونډه ضروري ده.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ تر څو د درسی کتاب د (۴۲) مخ فعالیتونه یو له بل سره په مشوره حل کړي او د ډله ایز کار دکولو په وخت کې یې څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په کې ونډه ولري.<br>د ډله ایز کار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ تر څو په خپل وارسره په تخته هغه فعالیت یې چې سرته رسولی دی نورو ته توضیح کړي. | – زده کوونکي له سلام او احوال پوښتنې څخه خوښیږي او په وروستیو فعالیتونوکې له ښوونکي سره مرسته کوي.<br>– زده کوونکي دښوونکي څرګندونو ته غوږدي او پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– زده کوونکي ځواب وایي.<br>– په غور سره د پوښتنو حلولو او امتحانولوته پام وکړي او که کومه پوښتنه ورته پیدا شي پوښتنه کوي.<br>– زده کوونکي په ډله ایز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي او د فعالیت د سرته رسولو په وخت کې خپل نظرونه د ډلې له غړو سره شریکوي.<br>– زده کوونکي د ډلو د نماینده ګانو توضیحاتوته غوږنیسي. |

| | |
|---|---|
| | **ارزونه:** |
| ۵<br>دقیقې | • د مفروق او مفروق منه توپیر څوک وئیلی شي؟<br>• څوک له ۵۰۰۹۱۴عدد څخه د۲۶۸۳۰عدد تفریق کولای شي؟<br>• څوک پورتنۍ پوښتنه دتفریق له سرته رسولو وروسته امتحان کولای شي؟<br>• که چیرې دتفریق دعملیې په امتحان باندې پوه نه شو په ورځنۍ ژوندکې به له کوموستونزو سره مخامخ شو؟ |
| | **د لوست لنډیز:** |
| ۵<br>دقیقې | تاسو په دې لوست کې زده کړل چې دتفریق پوښتنه مو سمه حل کړې ده که نه، هغه امتحان کوو.مثال:<br>۹۸۷۴ ⟵ مفروق منه<br>۵۴۲۱ − ⟵ مفروق<br>۴۴۵۳ ⟵ دتفریق حاصل<br>− دپورتنې مثال: د امتحان له پاره دتفریق حاصل له مفروق سره جمع کوو.<br>۴۴۵۳ ⟵ حاصل تفریق<br>۵۴۲۱ + ⟵ مفروق<br>۹۸۷۴ ⟵ مفروق منه<br>څرنگه چې دمفروق او دتفریق حاصل د حاصل جمع پایله، مفروق منه ورکړه نو ویلای شو چې دتفریق حاصل سم سرته رسیدلی دی<br>− د تفریق دعملې امتحان موږ ډاډه کوي چې حل شوی پوښتنه سمه حل شوی ده. |

**کورنۍ دنده:** در درسی کتاب د (۴۲) مخ پوښتنی په خپل کتابچو کې حل کړئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | − د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۴۳) مخ هره یوه پوښتنه پر زده کوونکو د تختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنو په حل کې له ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | − هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# دپوښتنو حل

## حل او امتحان يې کړئ

| پوښتنه | | | امتحان |
|---|---|---|---|
| ۸۹۷۳۰۵۰۴۲۱ | مفروق منه | د تفريق حاصل | ۷۴۵۱۶۶۴۴۴۵ |
| - ۱۵۲۱۳۸۵۹۷۶ | مفروق | | + ۱۵۲۱۳۸۵۹۷۶ |
| ۷۴۵۱۶۶۴۴۴۵ | د تفريق حاصل | مفروق منه | ۸۹۷۳۰۵۰۴۲۱ |

| پوښتنه | امتحان |
|---|---|
| ۲۳۹۰۶۵۷۴۳ | ۹۸۴۵۹۸۷۴۶۲ |
| - ۱۸۲۵۹۳۰۰۷ | - ۳۷۴۶۵۰۰۰۲۱ |
| ۱۵۶۴۷۲۷۳۶ | ۶۰۹۹۴۸۷۴۴۱ |
| | |
| ۷۹۴۳۰۰۱۸۵۳ | ۸۵۳۰۰۰۷۲۹ |
| - ۱۸۷۹۲۶۵۴۲۰ | - ۵۱۶۵۴۳۹۰۳ |
| ۶۰۶۳۷۳۶۴۳۳ | ۳۳۶۴۵۶۸۲۶ |
| | |
| ۷۹۸۵۲۰۰۸۴۱ | ۹۶۵۹۷۲۳۶۰ |
| - ۱۳۶۴۱۰۰۶۵۲ | - ۳۴۰۰۱۸۵۲۱ |
| ۶۶۲۱۱۰۰۱۸۹ | ۶۲۵۹۵۳۸۳۹ |
| | |
| ۸۵۳۰۰۰۷۲۹ | ۶۳۰۴۰۱۹۰۵۰ |
| - ۵۱۶۵۴۳۹۰۳ | - ۵۲۹۸۷۴۰۲۰۹ |
| ۳۳۶۴۵۶۸۲۶ | ۱۰۰۵۲۷۸۸۴۱ |
| | |
| ۹۸۴۵۹۸۷۴۶۲ | ۷۵۴۸۹۵۶۵۲ |
| - ۳۷۴۶۵۰۰۰۲۱ | - ۴۲۰۰۸۱۴۰۰ |
| ۶۰۹۹۴۸۷۴۴۱ | ۳۳۴۸۱۴۲۵۲ |

| | |
|---|---|
| ۶۵۹۷۶۵۰۰۸ | مفروق منه |
| - ۱۰۵۶۰۰۳۲۱ | مفروق |
| ۵۵۴۱۶۴۶۸۷ | حاصل تفريق |

مفروق منه ۸۹۷۳۰ ۵۰۴۲۱
مفروق ۱۵۲۱۳۸۵۹۷۶ -
حاصل تفریق ۷۴۵۱۶۶۴۴۴۵

حاصل تفریق ۷۴۵۱۶۶۴۴۴۵
مفروق ۱۵۲۱۳۸۵۹۷۶ +
مفروق منه ۸۹۷۳۰ ۵۰۴۲۱

۲۳۹۰۶۵۷۴۳
۱۸۲۵۹۳۰۰۷ -
۱۵۶۴۷۲۷۳۶

۹۸۴۵۹۸۷۴۶۲
۳۷۴۶۵۰۰۰۲۱ -
۶۰۹۹۴۸۷۴۴۱

۷۹۴۳۰۰۱۸۵۳
۱۸۷۹۲۶۵۴۲۰ -
۶۰۶۳۷۳۶۴۳۳

۸۵۳۰۰۰۷۲۹
۵۱۶۵۴۳۹۰۳ -
۳۳۶۴۵۶۸۲۶

۷۹۸۵۲۰۰۸۴۱
۱۳۶۴۱۰۰۶۵۲ -
۶۶۲۱۱۰۰۱۸۹

۹۶۵۹۷۲۳۶۰
۳۴۰۰۱۸۵۲۱ -
۶۲۵۹۵۳۸۳۹

۸۵۳۰۰۰۷۲۹
۵۱۶۵۴۳۹۰۳ -
۳۳۶۴۵۶۸۲۶

۶۳۰۴۰۱۹۰۵۰
۵۲۹۸۷۴۰۲۰۹ -
۱۰۰۵۲۷۸۸۴۱

۹۸۴۵۹۸۷۴۶۲
۳۷۴۶۵۰۰۰۲۱ -
۶۰۹۹۴۸۷۴۴۱

۷۵۴۸۹۵۶۵۲
۴۲۰۰۸۱۴۰۰ -
۳۳۴۸۱۴۲۵۲

د یارلسم لوست:

## سرليک: ددوه رقمي عدد ضرب په دوه رقمي عدد کې

**مخ: ۴۴**

**وخت: ۲درسي ساعتونه (۴۵دقيقه يي)**

**موخه:**

پوهنيزي : زده کوونکي دوه رقمي عددونه په يوبل کې په ضرب يوه شي.

مهارتی: زده کوونکي و کړای شي چې دوه رقمی عدد په دوه رقمی عدد باندی ضرب کړي.

ذهنيتي: زده کوونکي ددوه رقمی عددونو له ضوبولو څخه په دوه رقمی عدد کې د خوشحالی احساس وکړي.

**نوي اصطلاحات**: دوه رقمي، دضرب لومړی جزء، دضرب دويم جزء، دضرب حاصل.

**د زده کړې ميتود**: فعاله زده کړه(انفرادي کار، ګروپي کار، سوال او ځواب)

**د زده کړې مرستند په توکي:** د ضرب زباني جدول

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو څخه پوښتي. | – زده کوونکي له سلام اچولو او احوال پوښتنې څخه خوشحاليږي |
| | – د ضرب عمليه کومه بله عمليه اسانوي. | |
| | – که چيرې وغواړو دوه رقمي دوه عددونه په عمودي توګه ضرب کړو دضرب عمليه څرنګه پيل کړو؟ | – زده کوونکي فکر کوي او ځواب ورکوي. <br> – زده کوونکي لاس پورته کوي او ځواب ورکوي. |
| | – که چيرې وغواړو دضرب ددويم جزء لسيز رقم دضرب دلومړی جزء په يويز رقم کې ضرب کړو دضرب حاصل چيرې وليکو؟ | – زده کوونکي فکر کوي او ځواب ورکوي. |
| | – که چيرې زده کوونکي دورووستي ځواب په وړاندې کولوکې ستونزه ولري لارښونه ورته وکړئ. | – ځيني زده کوونکي دخپلې ستونزې دحل پوښتنې کوي. |
| | – د درسی کتاب د (۴۴) مخ لومړی مثال او د (۴۵) مخ (۲) ، (۳) او (۴) مثالونه د تختی پر مخ داسې حل کړئ چې زده کوونکی فعاله ونډه واخلي | – د ښوونکی توضيحاتو که په غور غوږ نيسي او که په ذهن کې ورته کومه پوښتنه پيدا شي، پوښتنه کوي. |
| | – زده کوونکي په ډلو ووېشئ ترڅو د درسي کتاب د (۴٦) مخ فعاليتونه يو له بل سره په مشوره حل کړئ. | – په ډله ايز کار کې فعاله ونډه واخلي. |
| | د ډله ايز کار د کولو په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ايز کار کې برخه واخلی. | – که د ډله ايزکار په سرته رسولوکې د کومې ستونزي سره مخ کيږي کولای شي چې پوښتنه وکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | – د ډله ایز کار په پای کې د ډلو له نماینده ګانو څخه وغواړی ترڅو په خپل وار سره د تختې پر مخ هغه فعالیت چې یې سرته رسولی دی نورو ته توضیح کړي. | – د نورو ډلو ډ نماینده ګانو توضیحاتوته غوږ نیسي که کومه پوښتنه لري کولای شي چې وپوښتي. |

**ارزونه:**

۵ دقیقې

- څوک د دوه رقمی عددونو ضرب په دوه رقمي عددونوکې، د عملیې مراحل ویلای شي؟
- څوک کولاي شي لاندې سؤال سم حل کړي؟

|   | ٦ | ٧ |
|---|---|---|
| × | ٣ | ٠ |

- څوک وئیلاي شي چې د ضرب عملیه زمونږ په ورځیني ژوندکې څه اهمیت لري؟

**د لوست لنډیز:**

۵ دقیقې

تاسو په دې لوست کې زده کړل.

که چیرې وغواړو دوه رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کړو په لاندې توګه عمل کوو. اول دضرب ددویم جزء یویز رقم دضرب د اول جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو دبر خط (کسری خط) لاندې یې لیکو ډول.

.

|   | ١ | ٦ | ⟵ د ضرب اول جزء |
|---|---|---|---|
| × | ٢ | ١ | ⟵ دضرب دوهم جزء |
|   | ١ | ٦ | ⟵ ١ × ١٦ |

– اوس دضرب ددویم جزء دلسیز رقم یعنې ۲دِضرب دلومړي جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو او دضرب حاصل یویز رقم دلومړی ضرب دحاصل دلسیز رقم لاندې لیکلو.

|   |   | ١ | ٦ | |
|---|---|---|---|---|
| × |   | ٢ | ١ | |
|   |   | ١ | ٦ | ⟵ ١ × ١٦ |
| + | ٣ | ٢ | ٠ | ٢٠ × ١٦ |

اوس که چېرې حاصلونه سره جمع کړو دضرب حاصل په لاس راځي.

|   |   | ١ | ٦ |
|---|---|---|---|
|   | × | ٢ | ١ |
|   |   | ١ | ٦ |
| + | ٣ | ٢ | ٠ |
|   | ٣ | ٣ | ٦ |

**کورنی دنده:**

– د کتاب د ۴٦ مخ پوښتني زده کوونکو ته دکورنی دندې په توګه ورکړئ چې حل یې کړي او بله ورځ یې وګورئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۴۷) او (۴۸) مخونو هره یوه پوښتنه پر زده کوونکو د تختې پر مخ حل کړئ او که د پوښتنونه په حل کې ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## پوښتنې

د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.

۶۶<br>× ۴۵<br>۳۳۰<br>۲۶۴<br>۲۹۷۰

۵۹<br>× ۷۱<br>۵۹<br>۴۱۳<br>۴۱۸۹

۸۸<br>× ۵۶<br>۵۲۸<br>۴۴۰<br>۴۹۲۸

۸۰<br>× ۷۰<br>۰۰<br>۵۶۰<br>۵۶۰۰

۷۷<br>× ۵۲<br>۱۵۴

۹۰<br>× ۴۰<br>۰۰

۳۸۵

۴۰۰۴

۳۶۰

۶۳۰۰

۵۸
× ۵۵
۲۹۰
۲۹۰
۳۱۹۰

۸۳
× ۱۸
۶۶۴
۸۳
۱۴۹۴

۴۸
× ۹۲
۹۶
۴۳۲
۴۴۱۶

۹۶
× ۶۶
۵۷۶
۵۷۶
۶۳۳۶

۵۶
× ۳۲
۱۱۲
۱۶۸
۱۷۹۲

۷۴
× ۶۱
۷۴
۴۴۴
۴۵۱۴

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- که یو واکسین کوونکی په یوه ورځ کې ۸۵ کوچنیانو ته واکسین تطبیق کړي په ۲۲ ورځو کې به څومره کوچنانو ته واکسین تطبیق کړي؟

$$\begin{array}{r} ۸۵ \\ \times \quad ۲۲ \\ \hline ۱۷۰ \\ ۱۷۰\phantom{۰} \\ \hline ۱۸۷۰ \end{array}$$

۲- د یو کیلوګرام ناکو قیمت ۶۷ افغانی دی د ۱۲ کیلو ګرامو ناکو قیمت پیدا کړئ.

$$\begin{array}{r} ۶۷ \\ \times \quad ۱۲ \\ \hline ۱۳۴ \\ ۶۷\phantom{۰} \\ \hline ۸۰۴ \end{array}$$

۳- که یو پانګه وال له ۵۲ غریبو کورنیو سره مالي مرسته وکړي ۱۴ پانګه وال به له څومره کورنیو سره مرسته وکړي؟

$$\begin{array}{r} ۵۲ \\ \times \quad ۱۴ \\ \hline ۲۰۸ \\ ۵۲\phantom{۰} \\ \hline ۷۲۸ \end{array}$$

۴- یو ښوال په یوه ورځ کې د ۲۴ نیالګیو ښاخونه پرې کوي، معلوم کړئ چې په ۱۳ ورځو کې به د څو نیالګیو ښاخونه پرې کړي.

$$\begin{array}{r} ۲۴ \\ \times \quad ۱۳ \\ \hline ۷۲ \\ ۲۴\phantom{۰} \\ \hline ۳۱۲ \end{array}$$

**۵**- که د یوې د سلو پاڼو لرونکي کتابچې بیه ۱۳ افغانۍ وي، د **۷۵** جلدو کتابچو قیمت پیدا کړئ.

$$
\begin{array}{rr}
 & ۷۵ \\
\times & ۱۳ \\
\hline
 & ۲۲۵ \\
 & ۷۵\phantom{0} \\
\hline
 & ۹۷۵
\end{array}
$$

**۶**- د یوه ګیلاس بیه **۱۵** افغانۍ ده، د **۲۵** ګیلاسونو قیمت پیدا کړئ.

$$
\begin{array}{rr}
 & ۲۵ \\
\times & ۱۵ \\
\hline
 & ۱۲۵ \\
 & ۲۵\phantom{0} \\
\hline
 & ۳۷۵
\end{array}
$$

۷- د یو کیلوګرام انګورو بیه **۲۵** افغانی ده، د ۱۲ کیلو ګرامو قیمت څو افغانی کیږي.

$$
\begin{array}{rr}
 & ۲۵ \\
\times & ۱۲ \\
\hline
 & ۵۰ \\
 & ۲۵\phantom{0} \\
\hline
 & ۳۰۰
\end{array}
$$

خوارلسم لوست

## سرليک: د دوه رقمي عدد ضرب په درې رقمي عدد کې

**وخت: ۲ ساعته (۴۵دقيقه يې)**

**مخ: ۴۹**

**موخې:**

- دانشی: زده کوونکي په درې رقمي عدد کې د دوه رقمي عدد ضرب باندې پوه شي.
- مهارتی: زده کوونکي دضرب د عمليې په سرته رسولوکې له ستونزو سره مخ نشي.
- ذهنيتی: زده کوونکې د ضرب د عمليې د داسې سؤالونو د اجرا کولو په بهير کې د خوښۍ احساس وکړي.

**نوي اصطلاحات:** (دوه رقمي، درې رقمي، دضرب اول جزء، د ضرب دويم جزء او د ضرب حاصل).

**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ډله ييزکار، سوال او ځواب، انفرادي کار)

**د زده کړې مرستند په توکي:** د کتاب د (۴۱) مخ د مثال حل شوی چارت.

**دلوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵دقيقې | – د مقدماتي فعاليتونو له تر سرته رسولو څخه وروسته | – زده کوونکي په سلام او احوال پوښتنه سره خوشحاليږي په وروستيو فعاليتونوکې له معلم سره مرسته کوي. |
| ۳۰دقيقې | له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• که چيرې وغواړو چې دوه رقمي عدد په يو درې رقمي عدد کې ضرب کړو لومړی دضرب ددويم جزء کوم رقم دضرب دلومړی جزء په هر رقم کې ضربوو.<br>• که چيرې دضرب ددويم جزء لسيز رقم دضرب دلومړي جزء په يويزکې ضرب کړو دضرب حاصل دعدد کومې مرتبې لاندې ليکو.<br>– د درسي کتاب د (۴۹) مخ لومړی مثال او د د (۵۰) مخ دويم مثال پرتخته په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري او له حلولو وروسته پوښتني امتحان کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو وويشئ چې د (۵۰) مخ فعاليتونه يو د بل سره په مشوره حل کړي د ډله ايزکار په وخت کې د ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول | – زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نيسي که سوال ورسره پيدا شي له ښوونکي پوښتنه کوي.<br>– زده کوونکي د مثال د حل په وخت کې ښوونکي ته ځوابونه وايي.<br>– زده کوونکي کوشش کوي چې ښوونکی ته قناعت بښونکي ځوابونه ورکړي.<br>– زده کوونکي د مثال په حل کې د ښوونکی پوښتنوته ځوابونه induced.<br>– په ډله ايزکار کې فعاله ونډه اخلي او خپل نظرونه وايي<br>– که د ډله ايزکار په سرته رسولو کې که د کومې |

<table>
<tr>
<td></td>
<td>زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>د ډلوله نماینده ګانو څخه و غواړی چې په خپل وارسره د تختی پر مخ هغه فعالیت چې سرته یې رسولی دی نوروته توضیح کړي.</td>
<td>ستونزی سره مخامخ کیږي له ښوونکی څخه مرسته غواړي.<br>– د هرې ډلی د نماینده توضیحاتوته په غور غوږږدي او که دکومی توضیح غوښتونکی وي پوښتنه کوي.</td>
</tr>
<tr>
<td>۵ دقیقې</td>
<td colspan="2">ارزونه:<br>
• څوک د دوه رقمي عددونو د ضرب مفهوم په درې رقمي عددونو کې وئیلی شي؟<br>
• څوک په لاندې پوښتنوکې په ټکو نښو شوو ځایونوکې عدد لیکلای شي؟<br>
۲۴۵<br>
× ۱۵<br>
۱۲۲۵ ⟵ ... × ۲۴۵<br>
+ ۲۴۵ ⟵ ... × ۲۴۵<br>
۳٦۷۵<br>
• کوم زده کوونکی دلاندې عدد دضرب حاصل ترلاسه کولی شي؟<br>
۱۳۷<br>
× ۹۴<br>
• څوک ویلای شي که چیرې یو دوه رقمي عدد په درې رقمی عدد کې ضرب ونه شو کړاي په ورځینې ژوندکې به له کومو ستونزو سره مخ شو.</td>
</tr>
<tr>
<td>۵ دقیقې</td>
<td colspan="2">د لوست لنډیز:<br>
تاسو په دې لوست کې زده کړل که چیرې یو دوه رقمي عدد په درې رقمي کې ضرب کړو باید داسې عمل وکړو چې لومړی دضرب ددویم جزء یویز رقم دضرب دلومړی رقم په ټولو رقمونوکې ضربوو او حاصل ضرب د بر خط لاندې لیکو.<br>
جزء اول ضرب ⟵ ۲۱۵<br>
جزء دوم ضرب ⟵ ۱۲ ×<br>
۲ × ۲۱۵ ⟵ ۴۳۰<br>
اوس دضرب ددویم جزء لسیز رقم یعنی(۱) دضرب لومړی جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو او دضرب دحاصل دغه یویز رقم دلومړی ضرب دحاصل دلسیز تر رقم لاندی لیکو.<br>
۲۱۵<br>
× ۱۲<br>
۲ × ۲۱۵ ⟵ ۴۳۰<br>
۱۰ × ۲۱۵ ⟵ ۲۱۵۰+<br>
اوس دغه حاصلونه سره جمع کوو او د ضرب حاصل لاسته راځي.<br>
۲۱۵<br>
× ۱۲<br>
۴۳۰<br>
+۲۱۵۰<br>
۲۵۸۰</td>
</tr>
</table>

**کورنی دنده:** زده کوونکی دې د درسی کتاب د ۵۱ مخ د کورنۍ دنده دوه سوالونه په خپلو کتابچو کې حل کړئ

دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | - د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۵۱) او (۵۲) مخونو هره یوه پوښتنه پر تخته په زده کوونکو حل کړئ او که په پوښتنو کې له ستونزي سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | - هغه زده کوونکي چې د پوښتنی د حل لپاره تخته ته را بلل کیږي ورکړل شوي شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## د کورنۍ دندي د پوښتنو حل

```
   ۵ ۱
×  ۷ ۸
--------
 ۴ ۱ ۰ ۴
۳ ۵ ۹ ۱
--------
۴ ۰ ۰ ۱ ۴
```

```
   ۹ ۰ ۲
×    ٦ ۵
--------
 ۴ ۵ ۱ ۰
۵ ۴ ۱ ۲
--------
۵ ۸ ٦ ۳ ۰
```

# د پوښتنو حل

د ضرب حاصل يې پيدا کړئ.

۳۴۰
× ۲۲
۷۴۸۰

۴۰۶
× ۳۱
۱۲۵۸۶

۵۴۳
× ۶۷
۳۶۳۸۱

۶۶۲
× ۷۸
۵۱۶۳۶

۳۷۹
× ۴۰
۱۵۱۶۰

۹۴۵
× ۵۷
۵۳۸۶۵

۴۰۶
× ۲۴
۹۷۴۴

۸۷۶
× ۹۵
۸۳۲۲۰

۷۷۷
× ۸۸
۶۸۳۷۶

۵۰۰
× ۴۴
۲۲۰۰۰

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- که د یو سیر مڼو قیمت ۳۲۰ افغانۍ وي د ۱۷ سیرو مڼو قیمت پیدا کړئ.

$$\begin{array}{r} ۳۲۰ \\ \times \quad ۱۷ \\ \hline ۵۴۴۰ \end{array}$$

۲- که د یوې قطۍ غوړو قیمت **۴۸۵** افغانۍ وي، د ۸۲ قطیو غوړو قیمت پیدا کړئ.

$$\begin{array}{r} ۴۸۵ \\ \times \quad ۸۲ \\ \hline ۳۹۷۷۰ \end{array}$$

۳- یو سړي د چرګانو د فارم د جوړولو لپاره **۴۲۳** چرګوړي راونیول که هر چرګوړی یې په **۹۵** افغانۍ اخیستې وي، د فارم په جوړولو یې څومره افغانۍ خرڅ کړی دی؟

$$\begin{array}{r} ۴۲۳ \\ \times \quad ۹۵ \\ \hline ۴۰۱۸۵ \end{array}$$

۴- که د یو سیر لوبیا قیمت ۲۸۰ افغانۍ وي د **۱۵** سیرو لوبیا د اخستلو لپاره څو افغانۍ په کار دي؟

$$\begin{array}{r} ۲۸۰ \\ \times \quad ۱۵ \\ \hline ۴۲۰۰ \end{array}$$

۵- یو سړي غواړي چې له خپلې یوې قطعې ځمکې څخه باغ جوړ کړي ددې کار لپاره **۲۸۰** میوه لرونکو نیالګیو ته اړتیآ ده که د یوه نیالګي قیمت **۹۵** افغانۍ وي، نوموړی سړي ددې باغ د جوړولو لپاره څو افغانیو ته اړتیا لري.

| | ۲۸۰ |
|---|---|
| × | ۹۵ |
| | ۲٦٦۰۰ |

۶- یو بڼوال له خپل بڼ څخه **۲۱۰** کیلو ګرامه انګور حاصل اخیستي دی که یو کیلو ګرام یې په **۴۵** افغانۍ خرڅ کړي وي، بڼوال څو افغانۍ لاسته راوړي دي؟

| | ۲۱۰ |
|---|---|
| × | ۴۵ |
| | ۹۴۵۰ |

۷- یو سړي یو کور نوی جوړوي چې ۱۸ دانو کړکیو ته اړتیا لري، که ترکاڼ هره کړکۍ په **۸۵۰** افغانیو جوړه کړي، د ترکاڼ مزدوري څو افغانۍ کیږي؟

| | ۸۵۰ |
|---|---|
| × | ۱۸ |
| | ۱۵۳۰۰ |

پنځلسم لوست

## سرلیک: د دوه رقمي عدد ضرب په څلور رقمي عدد کې

**مخ: ۵۳**

**وخت: ۲ درسی ساعته (۴۵ دقیقې)**

**موخې**

- دانشي: زده کوونکي د دوه رقمي عدد ضرب په څلور رقمي عدد کې پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکي د داسې سوالونو په حل کې ستونزه ونه لري.
- ذهنيتي: زده کوونکي د دوه رقمي عددونو د ضرب څخه په څلور رقمي کې ترې خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** (دوه رقمی – څلور رقمی)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزه کار، انفرادي کار، سوال او ځواب)

**د زده کړې درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د مقدماتی فعالیتونو له تر سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنی کړی.<br>• که چېرې د ضرب د دویم جزء یویز رقم ۴ وي او مونږ هغه د ضرب په لومړي جزء کې ضرب کړو ویلای شئ چې په حقیقت کې لومړی جز په څو کې ضرب شوی دی؟<br>• که چیرې د ضرب د دویم جزء یویز رقم ۷ وي او موږ هغه د ضرب په لومړي جزء کې ضرب کړو په دې صورت کې ویلای شئ چې په حقیقت کې د ضرب لومړی جزء په څو کې ضرب شوی دی؟<br>– د درسي کتاب د (۵۳) مخ لومړی مثال او د (۵۴) مخ دویم مثال پرتخته باندی داسې حل کړئ چې زده کوونکي هم فعاله ونډه ولري. | – زده کوونکي له سلام او احوال پوښتنې څخه خوښېږي او په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکي سره مرسته کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– د ښوونکی توضیحاتوته په غور سره غور نیسي او که په ذهن کې یې کومه پوښتنه پیدا کیږي پوښتنه کوي. |
| ۲۵ دقیقې | – زده کوونکي په ډلو وویشئ درسي کتاب د (۵۴ ) مخ فعالیتونه ورته ورکړئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل کړي.<br>– د ډله ایزکار د کولو په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه واخلي.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د خپل فعالیت سرته رسولی کار نورو ته توضیح کړي. | – په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلی او د پوښتنو د حل په وخت کې خپل نظرونه د نورو سره شریکوي.<br>– د ډله ایزکار د سرته رسولو په وخت کې که د کومې ستونزی سره مخامخ کیږي له ښوونکی څخه مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده د پوښتنو د حل په وخت کې متوجه وي.س |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>ښوونکی د ? = ۲۴ × ۴۳۲ پر تخته لیکی او وپوښتی.<br>• څوک د ۴۳۲٦ عدد له ۲۴ سره ضربولی شي؟<br>• څوک د ضرب لومړی جزء، دویم جزء او د ضرب حاصل ښودلی شي؟<br>• څوک ویلای شي چې په څلور رقمي عدد کې د دوه رقمي عدد ضرب په ورځني ژوند کې څه ارزښت لري؟ | ۵ دقیقې |
| **د لوست لنډیز:**<br>۱– تاسو پدې لوست کې زده کړل چې په څلور رقمي عدد کې دوه رقمي عدد د ضرب په عملیه کې د ضرب اول جزء کوم دی او د ضرب حاصل کوم دی.<br>د ضرب په عملیه کې لومړی د ضرب د دویم جزء یویز مرتبه د ضرب د اول جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو او مرحله په مرحله ستاسی په مشارکت داسې کار کوو.<br>مثلاً:<br>۲۳۲۱ ⟵ لومړی جزء<br>۲۴ × ⟵ لومړی جزء<br>۹۲۸۴ ⟵ ۴ × ۲۳۲۱<br><br>۲– د دویم جزء د لسیز رقم د ضرب د لومړي جزء په ټولو رقمونو کې ضربیږي.<br>۲۳۲۱ ⟵ لومړی جزء<br>۲۴ × ⟵ دویم جزء<br>۹۲۸۴ ⟵ ۴ × ۲۳۲۱<br>+ ۴٦۴۲ ⟵ ۲ × ۲۳۲۱<br><br>په پای کې ضربي اجزاء سره جمع کوو د ضرب حاصل لاسته راځي.<br>۲۳۲۱ ⟵ لومړی جزء<br>۲۴ × ⟵ دویم جزء<br>۹۲۸۴<br>+ ۴٦۴۲<br>۵۵۷۰۴ ⟵ د ضرب حاصل | ۱۰ دقیقې |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکې دې د درسی کتاب د (۵۵) مخ څخه د کورنۍ دندې پوښتنی په خپلو کتابچو کې حل کړي.

## د کورنۍ دنده د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۹۲۴ | ۷۳۰۴ | ۱۷۴۹ | ۶۰۰۳ |
| × ۸۰ | × ۹۳ | × ۵۰ | × ۴۵ |
| ۷۳۹۲۰ | ۶۷۹۲۷۲ | ۸۷۴۵۰ | ۲۷۰۱۳۵ |

## د پوښتنو حل

| | | |
|---|---|---|
| ۴۰۳۸ | ۲۸۶۱ | ۱۲۹۵ |
| × ۶۱ | × ۲۹ | × ۱۲ |
| ۲۴۶۳۱۸ | ۸۲۹۶۹ | ۱۵۵۴۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۰۰ | ۷۰۰۵ | ۸۴۰۰ |
| × ۹۹ | × ۴۳ | × ۷۸ |
| ۹۹۰۰۰ | ۳۰۱۲۱۵ | ۶۵۵۲۰۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ۷۳۲۶ | ۵۱۳۰ | ۳۶۰۴ |
| × ۱۰ | × ۸۴ | × ۴۳ |
| ۷۲۲۶۰ | ۴۳۰۹۲۰ | ۱۵۴۹۷۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸۳۵۴ | ۲۱۹۸ | ۳۰۹۸ |
| × ۴۹ | × ۶۵ | × ۵۰ |
| ۴۰۹۳۴۶ | ۱۴۲۸۷۰ | ۱۵۴۹۰۰ |

## دعبارتي پوښتنو حل

۱- یو سوداګر له **۹۵** غریبو کورنیو سره په برابر ډول نقدي مرسته کړې ده، که له هرې کورنۍ سره یې **۸۵۰۰** افغانۍ مرسته کړې وي، معلوم کړئ چې نوموړي ټولې څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

۸۵۰۰
× ۹۵
۴۲۵۰۰
۷۶۵۰۰
۸۰۷۵۰۰

۲- که د یوه ترکاڼ ورځنۍ اجوره ۱۱۵۰ افغانۍ وي، د **۱۵**ورځو اجوره یې پیدا کړئ.

۱۱۵۰
× ۱۵
۵۷۵۰
۱۱۵۰
۱۷۲۵۰

۳- یوه سړي **۳۵** پسونه خرڅ کړي دي که یو پسه یې په ۸۲۵۰ افغانۍ خرڅ کړي وي نوموړي څو افغانۍ لاسته راوړي دي.

۸۲۵۰
× ۳۵
۴۱۲۵۰
۲۴۷۵۰
۲۸۸۷۵۰

۴- که د یوه بایسکل قیمت ۲۴۶۰ افغانۍ وي. د **۴۵** عرادو بایسکلونو قیمت پیدا کړئ.

۲۴۶۰
× ۴۵

**۵**- یو بزګر **۷۲** بورۍ کچالو خرڅ کړي دي که هره بورۍ يې په **۱۳۸۵** افغانیو خرڅه کړې وي، څو افغانۍ يې لاسته راوړي دي؟

$$
\begin{array}{r}
۱۳۸۵ \\
\times \quad ۷۲ \\
\hline
۲۷۷۰ \\
۹۶۹۵\phantom{۰} \\
\hline
۹۹۷۲۰
\end{array}
$$

**۶**- یو سوداګر د یوه لومړني ښوونځي سره **۹۵** میزونه مرسته کړي ده، که د هر میز قیمت **۱۰۵۰** افغانۍ وي، معلوم کړي چې نوموړي سوداګر څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

$$
\begin{array}{r}
۱۰۵۰ \\
\times \quad ۹۵ \\
\hline
۵۲۵۰ \\
۹۴۵۰\phantom{۰} \\
\hline
۹۹۷۵۰
\end{array}
$$

۷- یو پانګه وال په مساوي ډول د **۸۳** کورنیو سره د اوړو یوه یوه بورۍ مرسته کړې ده که د هرې بورۍ قیمت ۱۲۸۰ افغانۍ وي، نو پیدا کړئ چې پانګه وال ټولې څو افغانۍ مرسته کړې ده؟

$$
\begin{array}{r}
۱۲۸۰ \\
\times \quad ۸۳ \\
\hline
۳۸۴۰ \\
۱۰۲۴۰\phantom{۰} \\
\hline
۱۰۶۲۴۰
\end{array}
$$

شپاړسم لوست

## سرلیک: د دوه رقمي عدد ضرب په څو رقمي عدد کې

**مخ: ۵۷**

**وخت: ۲ درسي ساعته (۴۵ دقیقې)**

**موخې**

- پوهنیزي: زده کوونکي د دوه رقمي عددونو ضرب په څو رقمي عددونو په مفهوم پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکي په اسانه توګه دوه رقمي عدد په څو رقمي عدد کې ضرب کړای شي.
- ذهنیتي: زده کوونکي د دغه ډول پوښتنو له حلولو خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** د ضرب عملیه، دوه رقمي، څو رقمي

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه، (ګروپي کار، انفرادي او پوښتنه او ځواب)

**د زده کړې درسي توکي:** تخته، دکتاب تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د مقدماتي فعالیتونو له سرته رسولو کولو څخه وروسته<br><br>له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې:<br>• که وغواړی چی یو دوه رقمی عدد په څو رقمی عدد کې ضرب کړی د ضرب عملیه څونګه سرته رسوئ<br>• آیا ویلای شی په دویمه مرحله کې څرنګه عمل سرته رسوي. | – زده کوونکي له سلام او احوال پوښتنې څخه خوشحالیږي په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکي سره مرسته کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته په ځیر سره غوږ نیسي که پوښتنه ورسره پیدا شي پوښتنه کوي. |
| ۳۰ دقیقې | • ستاسو په نظر بیا څه ډول عمل کوو او بیا څه کوو؟<br>– د درسي کتاب د (۷۵) مخ لومړی مثال او د (۸۵) مخ دویم مثال پر تختې باندې داسې حل کړئ چې زده کوونکي هم په کې ونډه واخلي<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ تر څو د درسی کتاب د (۵۸) مخ فعالیتونه یو د بل سره په مشوره حل کړي د ډله ایزکار د سرته رسولو په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه و لري.<br>د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره پر تخته سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړي. | – زده کوونکي د مثال حل ته متوجه وي.<br>– زده کوونکي ځواب ورکوي.<br>– د ښوونکی توضیحاتو ته په غور سره غوږږ دي او که ذهن ته یې کومه پوښتنه پیدا شي پوښتنه کوي.<br>– په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایز فعالیت په وخت کې د کومې ستونزی سره مخامخ کیږي د محترم ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنو حلولوته پاملرنه کوي. |

**ارزونه:**

۵ دقیقې

- څوک دوه رقمي عدد (۱۳) په (۳۱۲۵۳۱) عدد کې ضربولی شي؟
- څوک ویلای شي چې پورتنی ضرب څنګه پیل او څنګه پای ته رسیږي؟
- څوک ویلای شي چې د عددونو د ضرب عملیه په ورځني ژوند کې څومره ارزښت لري؟

**د لوست لنډیز:**

۵ دقیق

په نني لوست کې مو زده کړل چې په څو رقمي عدد کې د دوه رقمي عددونو په ضربولو کې عددونه یو تر بل لاندې لیکل کیږي داسې چې د مقامی قیمتو تر مینځ عمود خطونه رسموو او بیا ترې لاندې خط وباسو.

وروسته د ضرب د دویم جزء یویز رقم د ضرب د لومړی جزء په ټولو رقمونو کې ضربوو او د ضر ب حاصل د خط لاندې لیکو

| | | ۵ | ٦ | ۷ | ۲ | ۱ | ←لومړی جزء |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | × | | | | ۳ | ۲ | ←دویم جزء |
| | ۱ | ۱ | ۳ | ۴ | ۴ | ۲ | |

په وروستی مرحله کې د ضرب د دویم جزء لسیز رقم د ضرب د لومړی جزء په ټولو رقمو کې ضربوو داسې یې ضربوو چې د دغه حاصل اول رقم د اول حاصل د لسیز رقم لاندې لیکو د برخط په پای کې دواړه ضربي حاصلونه جمع کوو چې د غه حاصل د دواړو عددونو د ضرب حاصل دی.

| | | | ۵ | ٦ | ۷ | ۲ | ۱ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | × | | | | ۳ | ۲ | |
| | | ۱ | ۱ | ۳ | ۴ | ۴ | ۲ | |
| + | ۱ | ۷ | ۰ | ۱ | ٦ | ۳ | | |
| | ۱ | ۸ | ۱ | ۵ | ۰ | ۷ | ۲ | ←د ضرب حاصل |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د درسی کتاب د **۵۹** مخ د کورنۍ دندې پوښتنې خپلو کتابچو کې ولیکي او حل دې کړئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۵۹) او (٦۰) مخونو هره یوه پوښتنه د تختي پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه دښوونکی له خوا د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# د کورنۍ دنده د پوښتنې حل

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۸۵۴۳۲ | ۵۲۰۵۷۶ | ۴۳۲۹۸۷۱ | ۶۵۹۴۳۷۳ |
| × ۸۹ | × ۴۳ | × ۵۲ | × ۹۳ |
| ۷۶۰۳۴۴۸ | ۲۲۳۸۴۷۶۸ | ۲۲۵۱۵۳۲۹۲ | ۶۱۳۲۷۶۶۸۹ |

# د پوښتنو حل

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲۴۸۳ | ۲۳۰۵۴ | ۴۰۰۹۵ |
| × ۳۱ | × ۴۲ | × ۱۱ |
| ۳۸۶۹۷۳ | ۹۶۸۲۶۸ | ۴۴۱۰۴۵ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸۴۶۱۳ | ۷۳۵۴۰ | ۷۰۴۰۹ |
| × ۲۷ | × ۳۳ | × ۲۸ |
| ۲۲۸۴۵۵۱ | ۲۴۲۶۸۲۰ | ۱۹۷۱۴۵۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸۷۲۰۰ | ۴۳۴۱۷ | ۲۰۰۰۹ |
| × ۱۳ | × ۴۰ | × ۸۵ |
| ۱۱۳۳۶۰۰ | ۱۷۳۶۶۸۰ | ۱۷۰۰۷۶۵ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۵۷۲۱۴۰ | ۱۶۳۲۱۹۴ | ۲۵۸۷۹۳۶ |
| × ۳۲ | × ۶۵ | × ۴۶ |
| ۱۱۴۳۰۸۴۸۰ | ۱۰۶۰۹۲۶۱۰ | ۱۱۹۰۴۵۰۵۶ |

# د عبارتي پوښتنو حل

۱- یو سړي د څارويو یو زراعتي فارم لري که ورځني خرڅ یې **۳۲۱۴** افغانی وي، د یوې میاشتې (۳۰) ورځو خرڅ یې پیدا کړئ.

```
    ۳۲۱۴
×     ۳۰
--------
    ۰۰۰۰
+  ۹۶۴۲
--------
   ۹۶۴۲۰
```

۲- که د بوټونو د جوړولو فابریکه هره ورځ **۷۲۲۲۱** جوړې بوټونه جوړ کړي په **۲۴** ورځو کې څو جوړې بوټونه جوړولای شي؟

```
    ۷۲۲۲۱
×      ۲۴
---------
   ۲۸۸۸۸۴
+ ۱۴۴۴۴۲
---------
  ۱۷۳۳۳۰۴
```

۳- یو بڼوال **۵۱۲۴۰** کیلو انګور ګرام، یو کیلو ګرام یې په **۴۵** افغانۍ خرڅ کړی دی، بڼوال ټولې څو افغانی لاسته راوړې دي ؟

```
     ۵۱۲۴۰
×       ۴۵
----------
    ۲۵۶۲۰۰
+  ۲۰۴۹۶۰
----------
   ۲۳۰۵۸۰۰
```

**۴**- یوه مال لرونکي **۲۵** پسونه خرڅ کړل، که یو پسه يې په **۶۸۹۰** افغانیو خرڅ کړي وي، ټولې څو افغانۍ کیږي؟

```
     ۶۸۹۰
×      ۲۵
---------
    ۳۴۴۵۰
+  ۱۳۷۸۰
---------
   ۱۷۲۲۵۰
```

**۵**- که له کابل څخه تر کندهاره پورې د طیارې د یو کس د ټکټ قیمت **۳۴۱۲** افغانۍ وي، د **۸۲** مسافرو د ټکټونو قیمت څو کیږي؟

```
     ۳۴۱۲
×      ۸۶
---------
    ۲۰۴۷۲
+  ۲۷۲۹۶
---------
   ۲۹۳۴۳۲
```

**۶**- یوو لس سوداګر په یوه شرکت کې په مساوي ډول برخه لري که هر سوداګر **۱۱۴۹۳۵** افغانۍ شریکې کړې وي، د شرکت پانګه معلومه کړئ.

```
    ۱۱۴۹۳۵
×       ۱۱
----------
    ۱۱۴۹۳۵
+  ۱۱۴۹۳۵
----------
   ۱۲۶۴۲۸۵
```

**۷**- په یوه ساختماني شرکت کې ۱۸ انجینران کار کوي، که د یوه انجنیر کلنۍ تنخوا **۱۴۷۵۹۲۰** افغانۍ وي، د ټولو انجنیرانو کلنۍ تنخوا پیدا کړئ؟

```
    ۱۴۷۵۹۲۰
×        ۱۸
-----------
   ۱۱۸۰۷۳۶۰
  ۱۴۷۵۹۲۰
-----------
  ۲۶۵۶۶۵۶۰
```

اووه لسم لوست

## سرلیک: د دوه رقمي عدد تقسیم په دوه رقمي عدد باندې

**مخې: ٦١**

**وخت: ٢ درسي ساعته (٤٥ دقیقې)**

**موخې:**

- پوهنیزي: زده کوونکي په دوه رقمي عدد باندې د دوه رقمي عدد تقسیم په مفهوم پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکي د تقسیم د عملي په وخت کې له ستونزو سره مخ نه شي.
- ذهنیتي: زده کوونکي ددې ډول پوښتونو له حلولو څخه خوند واخلي او په ورځنی ژوند ترې ګټه واخلي.

**نوي اصطلاحات:** (دوه رقمي، په دوه رقمي)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه ( پوښتنه او ځواب، ګروپی کار، انفراي کار)

**د زده کړې درسي توکي:** تخته، تباشیر، درسی کتاب

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | - د لومړنیو فعالیتونو له سرته ر سولو څخه وروسته<br>- د زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. | - زده کوونکی له سلام او احوال پوښتنې څخه خوشحالیږي په کورنی دنده او د ټولګي په تنظیم کې له ښوونکی سره مرسته کوي. |
| ٢٥ دقیقې | • که چیرې یو دوه رقمي عدد په دوه رقمي باندې د تقسیم پوښتنه راکړل شي او مونږ هغه حل کړو د تقسیم له سر ته رسولو د مقسوم او مقسوم علیه په باره کې څه ډول فکر کولای شي؟<br>• که چیرې له فکر کولو څخه د مثال په ډول پوه شوو چې مقسوم علیه ۵ ځلي یا په تقریبي صورت یا په پوره ډول په مقسوم کې شامل دی دغه عدد د تقسیم د ښنې کومې خواته ولیکو؟<br>• کله چې مو خارج قسمت پیدا کړ او ومو لیکل بیا پاتی عملیه څه ډول مخته یوسو؟<br>- د درسي کتاب د (٦١) مخ لومړی مثال او د (٦٢) مخ دویم مثال پر تخته په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه واخلي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ د درسي کتاب د (٦٨) مخ فعالیت یو له بل سره په مشوره حل کړي د ډله ایز کار د سرته رسولو په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه واخلي.<br>د ډله ایز کار په پای کې د ډلو نمایده ګان راوغواړی ترڅو په خپل وارسره خپل سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړئ. | - زده کوونکي د ښوونکی هرې پوښتنې ته سم ځوابونه وایي<br>د مثال د حل په وخت کې زده کوونکي د ښوونکی توضیحاتوته غوږ دي او لازم معلومات حاصلوي په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو د حل په وخت کې خپل نظرونه نوروسره شریکوي.<br>- که د ډله ایزکار په وخت کې دکومې ستونزی سره مخامخ کیږي له محترم ښوونکی څخه مرسته غواړي.<br>- زده کوونکي دې د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتني حل ته هم باید پاملرنه وکړي. |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي که چیرې یو دوه رقمي عدد په دوه رقمي عدد وویشو لومړی د مقسوم او مقسوم علیه په هکله څنګه فکر کوو؟<br>• څوک د ۹٦ \| ۳۱ پوښتنه حلولی شي؟<br>• که چیرې دوه رقمي عدد په دوه رقمي عدد ونه شو ویشلای په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟ | ۵<br>دقیقې |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې که چیرې وغواړو دوه رقمي عدد په دوه رقمي عدد باندې وویشو په لاندې ډول یې حلوو د بیلګي په ډول:<br>مقسوم ⟵ ۴٦ \| ۱۱ ⟵ مقسوم علیه<br><br>۱− ګورو چې مقسوم علیه یعني ۱۱ څو ځلې په مقسوم یعني ۴٦ کې شامل دی؟<br>۲− په پورته مثال کې لیدل کیږي چې ۱۱ په ۴٦ کې څلور ځلې شامل دی نو خارج قسمت ۴ کیږي.<br>مقسوم ⟵ ۴٦ \| ۱۱ ⟵ مقسوم علیه<br>۴ ⟵ خارج قسمت<br><br>۳− خارج قست په مقسوم علیه کې ضربوو د مقسوم لاندې یې لیکو.<br>مقسوم ⟵ ۴٦ \| ۱۱ ⟵ مقسوم علیه<br>۴۴ \| ۴ ⟵ خارج قسمت<br><br>۴− وروسته د تفریق عملیه اجراء کوو.<br>مقسوم ⟵ ۴٦ \| ۱۱ ⟵ مقسوم علیه<br>− ۴۴ \| ۴ ⟵ خارج قسمت<br>باقی(پاتی) ⟵ ۲<br><br>پدې ډول د تقسیم (ویش) عملیه پای ته رسیږي. | ۱۰<br>دقیقې |

**کورنۍ دنده:**

− زده کوونکي دې د د درسی کتاب د (٦۲) مخ د کورنۍ ډنده پوښتنی په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

**دويمه درسی ساعت (۴۵ دقيقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (٦٣) او (٦۴) مخونو هره يوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه دښوونکی له خوا د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کيږي ورکړل شوې پوښتنه په غور سره حلوي. |

**دکورنی دنده حل :**

۸۴ | ۲۱
– ۸۴ | ۴
۰۰

۹۷ | ۳۲
– ۹۶ | ۳
۰۰

۷۳ | ۳۲
– ۶۴ | ۲
۹

۶۵ | ۱۴
– ۵۶ | ۴
۹

# د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل کړئ.

۳۱ | ۱۰
– ۳۰ | ۳
۱

۷۴ | ۳۵
– ۷۰ | ۲
۴

۶۷ | ۲۱
– ۶۳ | ۳
۴

۳۴ | ۱۱
– ۳۳ | ۳
۱

۴۵ | ۲۲
– ۴۴ | ۲
۱

۹۴ | ۴۵
– ۹۰ | ۲
۴

۸۶ | ۴۰
– ۸۰ | ۲
۶

۲۲ | ۱۰
– ۲۰ | ۲
۲

| ۸۳ | ۱۳ |
|---|---|
| -۷۸ | ۶ |
| ۱۰ | |

| ۴۴ | ۲۱ |
|---|---|
| -۴۲ | ۲ |
| ۲ | |

| ۶۹ | ۳۰ |
|---|---|
| -۶۰ | ۲ |
| ۹ | |

| ۶۰ | ۱۵ |
|---|---|
| -۶۰ | ۴ |
| ۰۰ | |

| ۷۷ | ۳۵ |
|---|---|
| -۷۰ | ۲ |
| ۷ | |

| ۷۴ | ۲۴ |
|---|---|
| -۷۲ | ۳ |
| ۲ | |

| ۹۳ | ۳۱ |
|---|---|
| -۹۳ | ۳ |
| ۰۰ | |

| ۸۰ | ۲۰ |
|---|---|
| -۸۰ | ۴ |
| ۰۰ | |

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- یو سړي **۳۲** دانې چاکلیت لري او غواړي چې د خپلې کورنۍ پر (۱۰) لسو غړو یې په مساوي ډول وویشي، د کورنۍ هر غړي ته څو، څو چاکلیت رسیږي او څو ورسره پاتې کیږي؟

| ۳۲ | ۱۰ |
|---|---|
| -۳۰ | ۳ |
| ۲ | |

۲- یو ښوونکی غواړي چې (۸۴) پاڼې سپین کاغذ په خپلو (۲۱) زده کوونکو په مساوي ډول وویشي، هر زده کوونکي ته څو پاڼې کاغذ رسیږي؟

| ۸۴ | ۲۱ |
| --- | --- |
| -۸۴ | ۴ |
| ۰۰ | |

۳- یوه خیریه بنیاد ۸۰ بوری اوړه ۲۰ غریبو کورنیو ته په مساوي ډول وویشل، هرې کورنۍ ته څو بورې اوړه ورکړل شوي دي.

| ۸۰ | ۲۰ |
| --- | --- |
| -۸۰ | ۴ |
| ۰۰ | |

۴- یو ښوونکي ۹۰ درسي کتابونه یوه ټولګي ته چې ۴۵ زده کوونکي لري په مساوي ډول وویشل، هر زده کوونکي ته څو کتابونه ورکړل شوي دي.

| ۹۰ | ۴۵ |
| --- | --- |
| -۹۰ | ۲ |
| ۰۰ | |

۵- یو بزګر غواړي چې ۸۰ سیره غنم اوړه کړي که د ورځې لس سیره غنم په ژرنده اوړه کړي، نو ټول غنم به په څو ورځو کې اوړه کړي.

| ۸۰ | ۱۰ |
| --- | --- |
| -۸۰ | ۸ |
| ۰۰ | |

اتلسم لوست

## سرلیک: د درې رقمي عدد تقسیم په دوه رقمي عدد باندې

**مخې:۶۵**

**وخت: ۲ درسی ساعتونه (۴۵ دقیقې)**

**موخې:**

- زده کوونکي د دری رقمی عددونو دویش په دوه رقمی عددونو باندې پوه شي.
- زده کوونکي دري رقمی عدد په دوه رقمی په مفهوم عدد باندی تقسیم کړای شي.
- زده کوونکي د پوښتنو دسم حل څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** مقسوم، مقسوم علیه، خارج قسمت، پاتې.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییزه کار، انفرادي کار، پوښتنه و ځواب)

**د زده کړې درسی توکي:** تخته، تباشیر، د کتاب

**د لوست بهیر**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د مقدماتی فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br><br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br>• په دوه رقمي عدد باندې د درې رقمي عدد د تقسیم په عملیه کې لومړی له کوم لورې پیل کوو او د مقسوم څو رقمونه له مقسوم علیه سره پرتله کوو؟<br>• که چیرې په پرتله کولو کې ولیدل شول چې بیا هم مقسوم علیه زیات دی څه باید وکړو؟ | – زده کوونکي له سلام او احوال پوښتنې څخه خوشحالیږي او په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکو سره مرسته کوي.<br>– زده کوونکي ښوونکي ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | – د درسی کتاب د ( ۶۵ ) مخ لومړی او دویم مثال د تختې پر مخ حل کړئ چې زده کوونکي هم فعاله ونډه واخلي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ ترڅو چې د درسی کتاب د (۶۶) مخ فعالیتونه یو له بل سره په مشوره حل کړي د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه خارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو له نماینده ګانو څخه وغواړئ ترڅو په خپل وارسره هغه فعالیت چې سرته یې رسولی دی نوروته توضیح کړي. | د مثالونو د حلولو په وخت کې د ښوونکی توضیحاتو ته غوږنیسي او لازم معلوماتونه حاصلوي.<br>– په ډله ایزکار کې فعاله برخه اخلي او د پوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایز فعالیت په وخت کې له کومې ستونزی سره مخامخ کیږي له ښوونکی مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د ډلو د نماینده ګانو د پوښتنی حل ته پاملرنه کوي. |

**ارزونه:**

۵ دقیقې

- څوک ویلای شي چې له مقسوم علیه سره د خارج قسمت د ضربولو په عملیه کې د تقسیم کوم جزء لاسته راځي؟
- څوک ۲۵۵ | ۱۵ پوښتنه حلولی شئ؟
- څوک ویلای شي چې د تقسیم د عملیي د امتحان په وخت کې په پاتې شوي عدد څه وکړو؟
- څوک ویلای شي چې د تقسیم د عملیي په پوهیدلو سره په ورځنی ژوند کې څه ګټې تر لاسه کوو؟

**د لوست لنډیز:**

۱۰ دقیقې

تاسو پدې پوه شوي چې په دوه رقمي عدد باندې د درې رقمي عدد ویش څه ډول سرته رسیږي که ۳۶۲ په (۱۵) باندې وویشو عملیه داسې سرته رسوو.

لومړی ګورو چې د ۳ عدد په ۱۵ نه ویشل کیږي نو شپږ ورسره ملګري کوو.

```
۳۶۲ | ۱۵
۳۰  | ۲
```

اوس د تفریق عملیه اجراء کوو:

```
۳۶۲ | ۱۵
– ۳۰ | ۲
  ٦
```

دلته ٦ په ۱۵ د ویش وړ نه دي.

په دې پړاو کې (۲) ښکته کوو:

```
۳۶۲ | ۱۵
– ۳۰ | ۲
  ٦۲
```

اوس لیدل کیږي چې ٦۲ په ۱۵ د ویشلو وړ دي نو ورته فکر کوو چې ۱۵ څو ځلي په ٦۲ کې شامل دي؟ ۴ ځلې نو په خارج قسمت کې د ۲ عدد سره څلور ښې خواته لیکو او په مقسوم علیه کې یې ضربوو چې ٦۰ کیږي او هغه تر ٦۲ لاندې لیکو.

```
۳۶۲ | ۱۵
– ۳۰ | ۲۴
  ٦۲
  ٦۰
```

اوس د تفریق عملیه اجراء کوو

```
۳۶۲ | ۱۵
– ۳۰ | ۲۴
  ٦۲
 – ٦۰
   ۲
```

ګورو چې ۲ باقي شول او د تقسیم (ویش) عملیه پای ته ورسیده.

**کورنۍ دنده:**

– د درسی کتاب د ٦٦ مخ کورنۍ دندې پوښتنه په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (٦٧) او (٦٨) مخونو هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# د پوښتنو حل

ویې ویشئ.

| ۵۶۳ | ۹۷ |
|---|---|
| – ۴۸۵ | ۵ |
| ۷۸ | |

| ۴۹۱ | ۸۵ |
|---|---|
| – ۴۲۵ | ۵ |
| ۶۶ | |

| ۸۲۴ | ۴۰ |
|---|---|
| – ۸۰ | ۲۰ |
| ۲۴ | |

| ۷۳۵ | ۳۵ |
|---|---|
| – ۷۰ | ۲۱ |
| ۳۵ | |
| – ۳۵ | |
| ۰۰ | |

| ۴۸۲ | ۳۰ |
|---|---|
| – ۳۰ | ۱۶ |
| ۱۸۲ | |
| – ۱۸۰ | |
| ۲ | |

| ۶۲۴ | ۱۷ |
|---|---|
| – ۵۱ | ۳۶ |
| ۱۱۴ | |
| – ۱۰۲ | |
| ۱۲ | |

| ۸۹۴ | ۴۱ |
|---|---|
| – ۴۸ | ۲۱ |
| ۷۴ | |
| – ۴۱ | |
| ۳۴ | |

| ۷۴۱ | ۱۷ |
|---|---|
| – ۶۸ | ۴۳ |
| ۶۱ | |
| – ۵۱ | |
| ۱۰ | |

۴۸۸ | ۴۴
۱۱
۴۸
- ۴۴
۴

۷۴۱ | ۱۷
۴۳
- ۶۸
۶۱
- ۵۱
۱۰

۷۸۷ | ۵۴
۱۹
- ۴۱
۳۷۷
- ۳۶۹
۸

۵۹۴ | ۵۴
۱۱
۵۴
۵۴
- ۵۴
۰۰

۷۷۷ | ۷۰
- ۷۰
۷ | ۱۱

۶۹۵ | ۳۰
۲۳
- ۶۰
۹۵
- ۹۰
۵

۹۹۰ | ۲۰
۴۹
- ۸۰
۱۹۰
۱۸۰
۱۰

۱۰۰ | ۳۳
۳
- ۹۹
۱

۶۷۲ | ۱۵
۴۴
-۶۰
۷۲
۷۰
۱۲

۸۸۲ | ۴۰
۲۲
- ۸۰
۲

۵۸۲ | ۲۵
۲۳
-۵۰
۸۲
- ۷۵
۷

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- د يوه ښوونځي د لومړي ټولګي د نويو زده کوونکو د داخلې شمير (**۵۴۰**) تنه دی که چېرې د ښوونځي اداره هغه په مساوي توګه په داسې ډول وويشي چې د هر ټولګي د داخلې شمېر (**۴۵**) تنه وي معلوم کړئ چې څو لومړي ټولګي جوړيږي ؟

| | |
|---|---|
| ۵۴۰ | ۴۵ |
| ۴۵- | ۱۲ |
| ۹۰ | |
| ۹۰- | |
| ۰۰ | |

۲- په يوه فابريکه کې ۱۲ پايې ماشينونه دي چې په هره دقيقه کې (۸٤) متره ټوکر توليد وي، معلوم کړئ چې يوه پايه ماشين په يوه دقيقه کې څو متره ټوکر توليدوي؟

| | |
|---|---|
| ۸۴ | ۱۲ |
| ۸۴- | ۷ |
| ۰۰ | |

۳- د واکسيناتورانو يو ټيم په ۹ ورځو کې ۱۲٦ کوچينان واکسين کړي دي، معلوم کړئ چې په يوه ورځ کې يې څو کوچنيان واکسين کړي دي؟

| | |
|---|---|
| ۱۲۶ | ۹ |
| ۹۰- | ۱۴ |
| ۳۶ | |
| ۳۶- | |
| ۰۰ | |

۴- یو بڼوال **۶۹۰** میوه لرونکي نیالګي په **۱۵** پټیو کې په مساوي ډول کښېنولې دي په هر پټي کې یې څو نیالګي کښینولي دي؟

| | |
|---|---|
| ۶۹۰ | ۱۵ |
| ۶۰- | ۴۶ |
| ۹۰ | |
| ۹۰- | |
| ۰۰ | |

۵- یو سړي **۱۵** کتابچې په **۸۴۰** افغانیو اخیستې دي د یوې کتابچې قیمت پیدا کړئ.

| | |
|---|---|
| ۸۴۰ | ۱۵ |
| ۷۵- | ۵۶ |
| ۹۰ | |
| ۹۰- | |
| ۰۰ | |

۶- یو دوکاندار **۱۰** سیره پیاز په **۹۹۰** افغانیو خرخ کړي دي یو سیر پیاز یې په څو افغانیو خرخ کړي دي.

| | |
|---|---|
| ۹۹۰ | ۱۰ |
| ۹۰- | ۹۹ |
| ۹۰ | |
| ۹۰- | |
| ۰۰ | |

نولسم لوست

## سرلیک: د څلور رقمي عدد تقسیم په دوه رقمي عدد باندې

**مخې: ٦٩**

**وخت: ۲ درسی ساعتونه (۴۵ دقیقې)**

**موخې:**

- دانشي: زده کوونکی د څلور رقمی ویش په دوه رقمی عددونو په طریقه پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکي په دوه رقمي عدد باندې د څلور رقمي عدد وویشلای شي.
- ذهنیتي: زده کوونکي داسی سؤالونو د صحیح حلولو څخه خوند واخلی.

**نوي اصطلاحات:** (څلور رقمي، دوه رقمي)

**د زده کړې میتود:**

فعاله زده کړه ( ډله ایز کار، انفرادي کار، پوښتنې او ځوابونه )

**د زده کړې درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر،

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتولوله سرته رسولو څخه ورو سته:<br><br>له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• د ویش د عملي په پیل کې د مقسوم رقمونه له مقسوم علیه سره له کوم لورې او څنګه پرتله کړو؟<br>• دغه کار د ویش د عملئ په سرته رسولو کې څومره اهمیت لري؟<br>– د درسي کتاب د (٦٩) او (٧٠) مخ لومړی او دویم مثال د تختې پر مخ په دې ډول حل کړی چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. | – زده کوونکي په سلام او احوال پوښتنه خوښیږي او په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکي سره مرسته کوي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او د مثال د حل طریقه زده کوي.<br><br>– زده کوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– زده کوونکي د مثال د حلولو په وخت کې د ښوونکی توضیحاتو ته غوږ نیسئ او لازم معلومات حاصلوي. په ډله ایزوکارو نوکې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو د حل په وخت کې خپل نظرونه له نوروسره شریکوي.<br>– که د ډله ایز فعالیت په وخت کې له کومې ستونزې سره مخامخ شوی له ښوونکی مرسته و غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنی حل ته هم پاملرنه کوي. |
| ۲۵ دقیقی | – زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (٧٠) مخ فعالیت زده کوونکو ته وسپارئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل کړي د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو له نماینده ګانو څخه و غواړی چې په خپل وارسره د تختې پرمخ سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړئ. | |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>• څوک د تقسیم (ویش) په عملیه کې مقسوم او مقسوم علیه سره پرتله کولای شي چې کوم یو باید لوی وي؟<br>• څوک ۴۵۳۲ عدد په ۴۴ ویشلای شي؟<br>• آیا زده کوونکي ویلای شي که چیرې په دوه رقمي عدد باندې د څلور رقمي عدد په ویش پوه نشو په ورځنیو چارو کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟ | ۵ دقیقې |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې:<br>په دوه رقمي عدد باندې د څلور رقمي عدد د وېشلو په عملیه کې تاسو مقسوم، مقسوم علیه، خارج قسمت او باقي مانده وپېژندل که چیرې د تقسیم یوه عملیه سر ته ورسوو په لاندې ډول عمل کوو:<br>مثلاً:<br>۳۲۰۰ \| ۲۴<br>−۲۴ \| ۱۳۳<br>۸۰<br>−۷۲<br>۸۰<br>−۷۲<br>۸<br>۲۴=۲۴×۱ وروسته ۳۲ څخه ۲۴ منفي کوو ۸ باقي پاتې کیږي اوس د ۲ تر څنګ صفر راکښته کوو بیا ۸۰ کیږي وګورو چې مقسوم علیه څو ځلي په ۸۰ کې شامل دی نو د خارج قسمت عدد ۳ دی اوس ۳ په ۲۴ کې ضربوو ۷۲ کیږي د تفریق له سرته رسولو وروسته ۸ باقي پاتي کیږي.<br>اوس بیا د ۸ ترڅنګ ته ښي لورې ته صفر را کښته کوو ۸۰ شول بیا د ۳ عدد په ۲۴ کې ضربوو ۷۲ کیږي نو ۷۲ ترې لاندې لیکو او منفي کوو بې بیا ۸ باقي پاتې کیږي پدې ډول د تقسیم عملیه سره ته رسوو. | ۱۰ دقیقې |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکی د درسی کتاب (۷۰) مخ د کورنۍ دندې سوالونه په خپل کتابچو کې حل کړئ.

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقی | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۷۱ ) او ( ۷۲ ) مخونو هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**دکورنۍ دنده حل:**

| ۷۲۹۴ | ۳۱ |
|---|---|
| -۶۲ | ۲۳۵ |
| ۱۰۹ | |
| -۹۳ | |
| ۱۶۴ | |
| -۱۵۵ | |
| ۹ | |

| ۹۴۹۸ | ۴۵ |
|---|---|
| -۹۰ | ۲۱۲ |
| ۴۹ | |
| -۴۵ | |
| ۹۸ | |
| -۹۰ | |
| ۸ | |

## د پوښتنو حل

ويې ويشئ:

| ۳۲۶۳ | ۸۷ |
|---|---|
| -۲۶۱ | ۳۷ |
| ۶۵۳ | |
| -۶۰۹ | |
| ۴۴ | |

| ۱۳۱۱ | ۲۳ |
|---|---|
| -۱۱۵ | ۵۷ |
| ۱۶۱ | |
| -۱۶۱ | |
| ۰۰۰ | |

| ۹۴۹۸ | ۴۵ |
|---|---|
| -۹۰ | ۲۱۱ |
| ۴۹ | |
| -۴۵ | |
| ۴۸ | |
| -۴۵ | |
| ۳ | |

| ۱۵۶۰ | ۷۸ |
|---|---|
| -۱۵۶ | ۲۰ |
| ۰۰۰ | |

| ۵۵۲۳ | ۵۰ |
|---|---|
| -۵۰ | ۱۱۰ |
| ۵۲ | |
| -۵۰ | |
| ۲۳ | |

| ۷۳۲۴ | ۷۱ |
|---|---|
| -۷۱ | ۱۰۳ |
| ۲۲۴ | |
| -۲۱۳ | |
| ۱۱ | |

۱۶۷۴ | ۵۴
-۱۶۲ | ۳۱
۵۴
-۵۴
۰۰

۳۷۹۵ | ۲۵
-۲۵ | ۱۵۱
۱۲۹
-۱۲۵
۴۵
۲۵
۲۰

۷۲۹۴ | ۳۱
-۶۲ | ۲۳۵
۱۰۹
-۹۳
۱۶۴
-۱۵۵
۹

۴۷۶۵ | ۵۸
-۴۶۴ | ۸۲
۱۲۵
-۱۱۶
۹

۶۵۸۷ | ۷۹
-۶۳۲ | ۸۳
۲۶۷
-۲۳۷
۳۰

۴۵۵۵ | ۴۱
۴۱ | ۱۱۱
-۴۵
۴۱
۴۵
-۴۱
۴

## د عبارتي پوښتنو حل

۱- یو بزګر په (۸۸) دقیقو کې یو جریب ځمکه یوې کوي معلوم کړئ چې په (۲۲۰۰) دقیقو کې به څو جریبه ځمکه یوې کړي؟

۲۲۰۰ | ۸۸
۱۷۶ | ۲۵
۴۴۰
۴۴۰
۰۰۰

۲- یو سوداګر (**۳۴۹۵**) کیلوګرامه میوه په (**۱۵**) دوکاندارانو په مساوي ډول خرڅه کړې ده. په هر دوکاندار یې څو کیلوګرامه میوه خرڅه کړې ده؟

$$
\begin{array}{r|l}
3495 & 15 \\ \cline{2-2}
30 & 233 \\ \cline{1-1}
49 & \\
45 & \\ \cline{1-1}
45 & \\
45 & \\ \cline{1-1}
00 &
\end{array}
$$

۳- د کابل او هرات ترمنځ واټن ۱۲۰۰ کیلومتره دی، که یو موټر په یوه ساعت کې ۸۰ کیلو متره لار ووهي دا موټر به له څو ساعتونو وروسته هرات ښار ته ورسیږي؟

$$
\begin{array}{r|l}
1200 & 80 \\ \cline{2-2}
80 & 15 \\ \cline{1-1}
400 & \\
400 & \\ \cline{1-1}
000 &
\end{array}
$$

۴- یو دوکاندار **۲۵** سیره کچالو په **۳۷۵۰** افغانیو خرڅ کړي دي، یو سیر کچالو یې په څو خرڅ کړي دي؟

$$
\begin{array}{r|l}
3750 & 25 \\ \cline{2-2}
25 & 150 \\ \cline{1-1}
125 & \\
125 & \\ \cline{1-1}
000 &
\end{array}
$$

**۵**- یو واکسیناتور په یوه ورځ کې **۵۰** کوچینان واکسین کوي، نو **۲۴۰۰** کوچینان به په څو ورځو کې واکسین کړي؟

$$
\begin{array}{r|l}
2400 & 50 \\ \cline{2-2}
200 & 48 \\ \cline{1-1}
400 & \\
400 & \\ \cline{1-1}
000 &
\end{array}
$$

**شلم لوست**

## سرلیک: د ضرب د عملیې (امتحان)

**مخ: ۷۲**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقې)**

**موخې :**

- پوهنیزي: زده کوونکي د ضرب عملیی د امتحان په مفهوم اوګټه پوه شي.
- مهارتی :زده کوونکي دې د ضرب عملیه له سرته رسولو وروسته هغه امتحان کړای شي.
- ذهنیتی: زده کوونکي د ضرب د سؤال د امتحانو سرڅخه خوښی احساس کړي.

**نوي اصطلاحات:** ضرب، امتحان، د ضرب عملیهٔ.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز کار، انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې درسی توکي:** تباشیر، تخته درسی کتاب.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – دلومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته:<br><br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>● د ضرب د یوې حل شوي پوښتنې د امتحان لپاره کومه عملیه ضروري ده؟<br>● د دغې عملیي اجزاء څنګه ټاکو؟<br>● د عملیي له اجراء څخه وروسته څنګه پوه شو چې پوښتنه سمه حل شوي ده؟ | – زده کوونکي په سلام اچولو او احوال پوښتنه خوشحالیږي په وروستیو فعالیتونو کې له ښوونکي سره مرسته کوي.<br><br>– زده کوونکي ځوابونه ورکوي. |
| ۳۰ دقیقې | – د درسي کتاب د (۷۳) مخ مثال د تختی پر مخ په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. بیا دا پوښتني امتحان کړئ او په امتحانولوکې هم د زده کوونکو ونډه ضروری ده.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د (۷۴) مخ فعالیت ورته ورکړئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل او امتحان کړي. د ډله ایزکار په وخت کی له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو د تختی پرمخ خپل سرته رسولی فعالیت نوروته واضیح کړي. | – د ښوونکی توضیحاتوته په غور سره غوږږ دي او که په ذهن کې ورته کومه پوښتنه پیدا کیږي پوښتنه کوي.<br>– خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایزکار په وخت کې د کومې ستونزي سره مخامخ کیږي له ښوونی مرسته غواړي.<br>– د ډلو د نماینده ګانو توضیحاتو ته په غور سره پاملرنه کوي او که کومه پوښتنه ورته پیدا شي په ازادانه ډول پوښتنه کوي. |

| وخت | فعالیت |
| --- | --- |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د ضرب شوې پوښتنې په امتحان کې کومې عملیې ته اړتیا ده؟<br>• څوک لاندې پوښتنې امتحان کولای شي؟<br>۲۱۵<br>× ۲۱<br>———<br>۲۱۵<br>+ ۴۳۰<br>———<br>۴۵۱۵<br>• څوک د امتحان کولو ګټې بیانولی شي؟<br>**د لوست لنډیز:**<br>کله چې وغواړو یو دوه رقمي عدد په درې رقمي کې ضرب کړو د ځان د ډاډ لپاره حل شوي پوښتنه امتحان وو. |
| ۵ دقیقې | د بیلګې په توګه که پوښتنه وشي چې د ضرب دغه پوښتنه سمه حل شوی ده او که نه؟<br>۴۵۲ ⟶ د ضرب لومړی جزء<br>× ۱۱ ⟶ د ضرب دویم جزء<br>———<br>۴۵۲<br>+ ۴۵۲<br>———<br>۴۹۷۲ ⟶ د ضرب حاصل<br>د ډاډ له پاره هغه په لاندې ډول امتحانوو.<br>د ضرب حاصل د ضرب په دویم جزء ویشو که چیرې په خارج قسمت کې د ضرب لومړی جزء ترلاسه شو پوښتنه سمه ده او که نه شوه نو غلطه ده.<br>۴۹۷۲ \| ۱۱<br>− ۴۴ \| ۴۵۲<br>———<br>۵۷<br>− ۵۵<br>———<br>۲۲<br>− ۲۲<br>———<br>۰۰<br>لیدل کیږي چې خارج قسمت **۴۵۲** دی، چې د ضرب لومړی جزء دی نو ویلای شو چې د ضرب راکړل شوې پوښتنه سمه ده او ځواب یې صحیح دی. |

**کورنۍ دنده:**

− زده کوونکې دې درسی کتاب د درسی (۷۵) مخ د کورنۍ دندې پوښتني په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**دويم درسی ساعت (۴۵ دقيقه)**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
| --- | --- | --- |
| ۴۵دقيقې | – د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۷۵ ) مخ هره يوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختې ته يو ته را بلل کيږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## دکورنۍ دندې حل

لاندې پوښتنې حل او بيا يې امتحان کړئ

۸ ۸
× ۶ ۴
۳ ۵ ۲
+ ۵ ۲ ۸
۵ ۶ ۳ ۲

۹ ۰ ۰
× ۷ ۵
۴ ۵ ۰ ۰
+ ۶ ۳ ۰ ۰
۶ ۷ ۵ ۰ ۰

۱ ۸ ۹
× ۱ ۵
۹ ۴ ۵
+ ۱ ۸ ۹
۲ ۸ ۳ ۵

## د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل او بيا يې امتحان کړئ.

۳۹۵
× ۶۴
۱ ۵ ۸ ۰
+ ۲ ۳ ۷ ۰
۲ ۵ ۲ ۸ ۰

۷۵۸
۶۵
۳ ۷ ۹ ۰
۴ ۵ ۴ ۸
۴ ۹ ۲ ۷ ۰

۶۰۲
× ۷۱
۶ ۰ ۲
+ ۴۲۱۴

۸۰۷
۹۰
۰ ۰ ۰
۷ ۲ ۶ ۳

۷۲۶۳۰ | ۴۲۷۴۲

۹۰۰
× ۵۷
۶۳۰۰
+ ۴۵۰۰
۵۱۳۰۰

۵۱۸
× ۹۶
۳۱۰۸
+ ۴۶۶۲
۴۹۷۲۸

۸۶۵
× ۹۹
۷۷۸۵
+ ۷۷۸۵
۸۵۶۳۵

۷۰۹
× ۹۷
۴۹۶۳
+ ۶۳۸۱
۶۸۷۷۳

د نمونې په ډول يوه پوښتنه امتحانوو:

۷۵۸
× ۶۵
۳۷۹۰
+ ۴۵۴۸
۴۹۲۷۰

۴۹۲۷۰ | ۶۵
− ۴۵۵ | ۷۵۸
۳۷۷
− ۳۲۵
۵۲۰
− ۵۲۰
۰۰۰

یو ویشتم لوست

## سرلیک: د تقسیم د عملیې ازمېښت( امتحان) چې پاتی ونه لري

**مخی: ۷۶**

**وخت: ۲ درسي ساعته (۴۵ دقیقې)**

**موخې:**

- پوهنیزي : زده کوونکې دی د تقسیم د عملیې د امتحان په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکې دې د تقسیم عملیه سمه سر ته ورسوی او بیابې تحان کړای شی.
- ذهنیتی : زده کوونکې دې د تقسیم د امتحان د عملیې له سرته رسولو څخه نتیجه ترلاسه کړي او خوشحاله شی.

**اصطلاحات:** (د تقسیم د عملي امتحان)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې درسی توکي:** کتاب، تخته، تباشیر،

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته:<br><br>– د زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ:<br>• د تقسیم د پوښتنی د امتحانولو له پاره کومې عملیې ته اړتیا لرو؟<br>د تقسیم د عملیې له سرته رسولو وروسته د پوښتنه د سموالی په هکله څه ډول نتیجه اخلو | – زده کوونکي په سلام اچولو او احوال پوښتنه خوشحالیږي او په وروستیو فعالیتونو کې مرسته کوي.<br><br>– هر یو زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| ۲۵ دقیقی | – د درسي کتاب د (۷۶) مخ مثال پرتخته باندی داسی حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري بیا د پوښتنی له حلولو څخه وروسته امتحان کړئ او د امتحانو لوپه وخت کې د زده کوونکو ونډه هم ضروری ده.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۷۷) مخ فعالیت دوي ته وسپارئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل او امتحان کړي د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ چې په خپل وارسره د تختی پرمخ سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړي. | – د مثال دحلولو او امتحانولو په وخت کې دښوونکی توضیحاتوته غوږ نیسي او وړمعلوماتونه حاصلوي. په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورورسره شریکوي.<br>– د ډله ایز فعالیت په وخت کې که د کومې ستونزی سره مخامخ کیږي له ښوونکی مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د پوښتنی حل ته هم پاملرنه کوي. |

| | |
|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د تقسیم په عملیه کې کوم عدد له کوم عدد سره ضرب او حاصل يې له کوم عدد سره جمع کیږي؟<br>• څوک دغه ۶۰۰ \| ۲۵ سوال حلوي او امتحانو لای يې شي؟<br>• که چیرې د تقسیم د عملیې په امتحانو لو پوه نه شو نو په ورځیني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو ځواب به يې څوک ووايي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>تاسو پدې نني لوست کې زده کړل:<br>که چیرې وغواړو د تقسیم يو حل شوی پوښتنه امتحان کړو په لاندې ډول ئې امتحانو.<br>مقسوم ← ۳۲۴ \| ۲۴ ← مقسوم علیه<br>− ۲۴ \| ۱۳ ← خارج قسمت<br>۸۴<br>− ۷۲<br>باقی ← ۱۲<br>لومړي خارج قسمت يعني ۱۳ په مقسوم علیه يعني ۲۴ ضربوو د ضرب حاصل له باقی سره جمع کوو که چیرې مقسوم يعني ۳۲۴ عدد په لاس راغی زموږ پوښتنه سمه حل شوي ده.<br>او له دې پرته غلطه ده.<br>باقیمانده خارج قسمت مقسوم علیه<br>= ۱۲ + (۱۳ × ۲۴)<br>۳۲۴ = ۱۲ + ۳۱۲<br>نو ډاډمن کیږو چې د تقسیم پوښتنه صحیح حل شوې ده. |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي د درسی کتاب (۷۸) مخ د کورني دندې پوښتني په خپلو کتابچو کي ولیکي بیاېې حل او امتحان کړي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقی | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۷۸ ) مخ هره يوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## د کورنۍ دنده حل

لاندې پوښتنې حل او بیا یې امتحان کړئ.

| ۳۰۰ | ۲۵ |
|---|---|
| ۲۵ - | ۱۲ |
| ۵۰ | |
| ۵۰ - | |
| ۰۰ | |

امتحان

| | |
|---|---|
| | ۲۵ |
| × | ۱۲ |
| | ۵۰ |
| + | ۲۵ |
| | ۳۰۰ |

| ۶۸۲ | ۳۱ |
|---|---|
| ۶۲ - | ۲۲ |
| ۶۲ | |
| ۶۲ - | |
| ۰۰ | |

امتحان

| | |
|---|---|
| | ۳۱ |
| × | ۲۲ |
| | ۶۲ |
| + | ۶۲ |
| | ۶۸۲ |

## د پوښتنو حل

| ۴۵۰ | ۳۰ |
|---|---|
| ۳۰ - | ۱۵ |
| ۱۵۰ | |
| ۱۵۰ - | |
| ۰۰۰ | |

| ۱۸۰ | ۱۵ |
|---|---|
| ۱۵ - | ۱۲ |
| ۳۰ | |
| ۳۰ - | |
| ۰۰ | |

| ۱۱۲۱ | ۱۹ |
|---|---|
| ۹۵ - | ۵۹ |
| ۱۷۱ | |
| ۱۷۱ - | |
| ۰۰۰ | |

| ۱۱۸۰ | ۵۹ |
|---|---|
| ۱۱۸ - | ۲۰ |
| ۰۰۰ | |

۸۳۳ | ۴۹
-۴۹ | ۱۷
۳۴۳
-۳۴۳
۰۰۰

۸۶۸ | ۶۲
-۶۲ | ۱۴
۲۴۸
-۲۴۸
۰۰۰

۱۰۵۰ | ۴۲
-۸۴ | ۲۵
۲۱۰
-۲۱۰
۰۰۰

۱۲۵۸ | ۳۷
-۱۱۱ | ۳۴
۱۴۸
-۱۴۸
۰۰۰

۲۲۹۶ | ۵۶
-۲۲۴ | ۴۱
۵۶
-۵۶
۰۰

۳۳۸۸ | ۷۷
-۳۰۸ | ۴۴
۳۰۸
-۳۰۸
۰۰۰

**د مثال په ډول لمړی او دویمه پوښتنه امتحان کوو:**

امتحان

۳۰
× ۱۵
۱۵۰
+ ۳۰
۴۵۰

امتحان

۱۵
× ۱۲
۳۰
+ ۱۵
۱۸۰

دوه یشتم لوست

## عنوان: د وېش د عملیې امتحان چې پاتې ولري

**صفحه:** ( ۷۹ )

**وخت:** ۲ درسي ساعتونه ( ۴۵ دقیقه یې)

**موخې:**

- پوهنیزي: زده کوونکي دهغه ویش د امتحانولو په مفهوم پوه شي چې پاتې ولري.
- مهارتي: زده کوونکی دهغه ویش پوښتني چې پاتې ولري امتحان کړای شي.
- ذهنيتي: زده کوونکي دویش دهغه پوښتنوله امتحانولو څخه چې پاتې ولري خوند واخلي.

**د تدریس طریقې:** فعاله زده کړه ( ډله ایزکار، یواځې کار)

**درسي توکي:** کتاب ، تخته تباشیر

| وقت | فعالیت های معلم | فعالیت های شاګردان |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړینو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو پوښتني وکړئ. | – د ښوونکي له احوال پوښتنی څخه د خوښی احساس کوي. |
| ۳۰دقیقې | • آیا ویلای شئ دویش دهغه پوښتنو امتحانول چې باقي ولري دهغه پوښتنو له امتحانولو سره چې باقی ونه لري توپیر لري که نه ؟<br>• ستاسو په فکر داتوپیر به څه وي ؟<br>– د درسي کتاب د (۷۹) مخ مثال پرتخته داسي حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. بیا دا پوښتنی له حلولو څخه وروسته امتحان کړئ د پوښتنو په امتحانو لوکې هم د زده کوونکو ونډه ضروری ده.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۸۰) مخ فعالیت هغوي ته ورکړئ ترڅو یو د بل په مشوره سره یې حل او امتحان یې کړي د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کی برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راو غواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختی پرمخ خپل سرته رسولی فعالیت د تختی پرمخ نوروته توضیح کړي. | – زده کوونکي د ښوونکی پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>– بلی، توپیرلري.<br>– د مقسوم او مقسوم علیه د ضرب له حاصل سره باقی بانده جمع کیږي.<br>– د ښوونکی توضیحاتوته پاملرنه کوي د ښوونکی هرې پوښتنی ته ځواب وایي.<br>– د مثال د حلولو او امتحانو لو په وخت کې متوجه وی او د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوی.<br>– په ډله ایزکار کې فعاله برخه اخلي.<br>– د ډله ایزکار په وخت کې که له ستونزی سره مخ کولای شي چې پوښتنه وکړي.<br>– د نورو ډلو د نماینده ګانو توضیحاتوته غوږږ دي او که پوښتنه ولري کولای شي چې و پوښتي. |

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**<br>• څوک ویلای شي چې دویش د عملیې په امتحانو لوکې کوم عدد له کوم عدد سره ضربیږي او له کوم عدد سره جمع کیږي.<br>• څوک دا پوښتنه ۲۵ \| ۶۰۰ حلوي او بیا یې امتحانوي.<br>• څوک ویلای شی که دویش د عملیی په امتحانو لوپوه نه شو په ورځني ژوند کې له کومې ستونزو سره مخامخ کیږو |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز :**<br>تا سو په دی لوست کې زده کړه ٥ چې:<br>هر کله چې وغواړو دویش حل شوې پوښتنه امتحان کړو په لاندې ډول عمل کوو<br>د مثال په ډول:<br>لومړی دویش حاصل (۱۳)<br>په مقسوم علیه (۲۴) کې<br>ضربوو او باقی(۱۲) ورسره جمع کوو که<br>چیری مقسوم(۳۲۴) یې په لاس راکړل زمونږ<br>د پوښتنی حل سم دی او که نه نو غلط دی.<br><br>مقسوم ← ۳۲۴ \| ۲۴ ← مقسوم علیه<br>− ۲۴ \| ۱۳ ← خارج قسمت<br>۸۴<br>− ۷۲<br>باقیمانده ← ۱۲<br><br>باقی + دویش حاصل × مقسوم علیه<br>(۲۴ × ۱۳) + ۱۲ =<br>۳۱۲ + ۱۲ = ۳۲۴<br><br>نو وایو چې دویش پوښتنه سمه حل شوي ده. |

**کورنۍ دنده:**

د درسی کتاب د (۸۱) مخ د کورنۍ دندې پوښتنی په خپلو کتابچو کې حل او امتحان یې کړی.

دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۸۱) مخونو هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل او امتحان کړئ او که چیرې د پوښتنو په حلولو او امتحانولوکې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## د کورنۍ دندې د پوښتنو حل

لاندې پوښتنې حل ، او بیا یې امتحان کړئ

۵۶۳ | ۵۱
−۵۱ | ۱۱
۵۳
−۵۱
۲

۷۸۶ | ۳۵
−۷۰ | ۲۲
۸۶
−۷۰
۱۶

## د پوښتنو ( حل )

۶۷۲ | ۵۴
−۵۴ | ۱۲
۱۳۲
−۱۰۸
۲۴

۸۵۴ | ۲۱
−۸۴ | ۴۰
۱۴

۶۹۹ | ۳۳
−۶۶ | ۲۱
۳۹
−۳۳
۶

۹۷۸ | ۴۱
−۸۲ | ۲۳
۱۵۸
−۱۲۳
۳۵

| ۲۸۳۱ | ۶۹ |
|---|---|
| -۲۷۶ | ۴۱ |
| ۷۱ | |
| -۶۹ | |
| ۲ | |

| ۲۱۸۰ | ۶۶ |
|---|---|
| -۱۹۸ | ۳۳ |
| ۲۰۰ | |
| -۱۹۸ | |
| ۲ | |

| ۲۱۶۱ | ۵۵ |
|---|---|
| -۱۶۵ | ۳۹ |
| ۵۱۱ | |
| -۴۹۵ | |
| ۱۶ | |

| ۵۶۰۵ | ۸۰ |
|---|---|
| -۵۶۰ | ۷۰ |
| ۵ | |

| ۲۰۹۵ | ۹۵ |
|---|---|
| -۱۹۰ | ۲۲ |
| ۱۹۵ | |
| -۱۹۰ | |
| ۵ | |

| ۵۲۰ | ۴۷ |
|---|---|
| -۴۷ | ۱۱ |
| ۵۰ | |
| ۴۷ | |
| ۳ | |

**د نمونې په ډول لومړی پوښتنه امتحانوو**

| | | |
|---|---|---|
| دويش حاصل | ۴۰ | × |
| مقسوم عليه | ۲۱ | |
| | ۴۰ | |
| | ۸۰ | |
| دويش د حاصل او مقسوم عليه د ضرب حاصل | ۸۴۰ | |
| پاتي | ۱۴ | + |
| مقسوم | ۸۵۴ | |

نو کولای شوو په دې ډول يې خلاصه کړو.

دويش دهغه عمليې د امتحانولو لپاره چې باقي ( پاتي) ولري.

مقسوم = باقي + دويش حاصل × مقسوم عليه

# د دویم څپرکي د سر بیره پوښتنو کلي

| پوښتنې | ځوابونه |
|---|---|
| ۱) د ۹۲۷۶۸۴۱۳۰ په پوښتنه کې دجمع د عملیې اجزاء<br>۹۲۷۶۸۴۱۳۰<br>+ ۳۹۲۵۰۴۲۵۴<br>۱۳۲۰۱۸۸۳۸۴<br>شرحه کړئ. | ۹۲۷۶۸۴۱۳۰ ← دجمع لومړی جزء<br>+ ۳۹۲۵۰۴۲۵۴ ← دجمع دویم جزء<br>۱۳۲۰۱۸۸۳۸۴ ← د جمعې حاصل |
| ۲) دجمع عملیه سرته ورسوی کړئ:<br>۵۶۰۰۲۹۵۷۳<br>+ ۳۶۶۱۱۸۵۰۰ | ۵۶۰۰۲۹۵۷۳<br>+ ۳۶۶۱۱۸۵۰۰<br>۹۲۶۱۴۸۰۷۳ |
| ۳) د پوښتنه حل او امتحان یې کړئ.<br>۳۷۴۹۸<br>+ ۴۵۲۴۵ | حل: (circled: ۱ ۱ ۱)<br>۳۷۴۹۸<br>+ ۴۵۲۴۵<br>۸۲۷۴۳<br><br>امتحان:<br>۸۲۷۴۳<br>− ۴۵۲۴۵<br>۳۷۴۹۸ |
| ۴) له ۹۷۰۲۵۳ عدد څخه ۶۳۵۲۱۲ عدد تفریق کړئ او په دویم پړاو کې د تفریق د عملیې اجزاء په حل شوي مثال کې وښیئ. | (circled: ۶ ۹ ۱۲ ۲ ۱۰)<br>۹۷۰۲۵۳۰ ← مفروق منه<br>− ۶۳۵۲۱۲ ← مفروق<br>۹۰۶۷۳۱۸ ← حاصل تفریق |
| ۵) یو کروند ګر له خپلو محصولاتو څخه ۳۸۴۵۰۰۹ افغانۍ ترلاسه کړې او په نومړو پیسو یې په ۳۲۵۰۱۵ افغانیو یو ترکتور واخیست. معلوم کړئ چې له کروندګر سره څو افغانۍ پاتې دي؟ | (circled: ۳ ۱۴ ۹ ۱۰)<br>۳۸۴۵۰۰۹<br>− ۳۲۵۰۱۵<br>۳۵۱۹۹۹۴ افغانۍ |
| ۶) دغه لاندی د تفریق پوښتنه حل او وروسته یې امتحان کړئ.<br>۲۹۳۲۱۵<br>− ۱۲۲۳۱۰ | (circled: ۲ ۱۲)<br>۲۹۳۲۱۵<br>− ۱۲۲۳۱۰<br>۱۷۰۹۰۵<br><br>امتحان: (circled: ۱)<br>۱۷۰۹۰۵<br>+ ۱۲۲۳۱۰<br>۲۹۳۲۱۵ |
| ۷) د پوښتنه حل او د ضرب اجزاء وښیئ.<br>۶۷<br>× ۳۲ | ۶۷ ← د ضرب لومړی جزء<br>× ۳۲ ← د ضرب دویم جزء<br>۲۱۴۴ ← د ضرب حاصل |
| ۸) پوښتنه حل کړئ او په ورستی پړاو کې هغه امتحان کړي.<br>۵۰<br>× ۳۵ | ۵۰<br>× ۳۵<br>۱۷۵۰ |

| پوښتنې | ځوابونه |
| --- | --- |
| ۹) پوښتنه حل کړئ. ۴۱۲۳ × ۳۲ | ۴۱۲۳ × ۳۲ = ۱۳۱۹۳۶ |
| ۱۰ ) دضرب عمليه سرته ورسوی ۲۱۸۹ × ۵۶ | ۲۱۸۹ × ۵۶ = ۱۲۲۵۸۴ |
| ۱۱) دضرب عمليه سرته ورسوی ۱۰۰۰ × ۹۹ ، ۷۰۰۵ × ۴۳ | ۱۰۰۰ × ۹۹ = ۹۹۰۰۰ ، ۷۰۰۵ × ۴۳ = ۳۰۱۲۱۵ |
| ۱۲) د۸۹ عدد په ۱۱ باندې وويشئ او په هغه کې د تقسيم عمليې اجزاء وښيئ. | ۸۹ ÷ ۱۱ : مقسوم ← ۸۹ ، مقسوم عليه ← ۱۱ ، − ۸۸ ، خارج قسمت ← ۸ ، باقی ← ۱ |
| ۱۳) دتقسيم عمليه سرته روسوي ۹۳ ÷ ۱۷ ، ۸۷ ÷ ۴۱ ، ۸۰ ÷ ۲۰ | ۹۳ ÷ ۱۷ = ۵ (− ۸۵)، باقی ۸ ، ۸۷ ÷ ۴۱ = ۲ (− ۸۲)، باقی ۵ ، ۸۰ ÷ ۲۰ = ۴ (− ۸۰)، باقی ۰ |
| ۱۴– يوه تن ۶۳ چاکليته د خپلې کورنۍ پر ۹ تنو ويشي د هغې کورنۍ هر غړي ته څو چاکليته رسيږي؟ | ۶۳ ÷ ۹ = ۷ ، − ۶۳ ، باقی ← ۰۰ |
| ۱۵) ۸۴ پاڼي سپين کاغــــذ په ۲۱ زده کوونکو وويشئ، هر زده کوونکي ته به څو پاڼې کاغذ ورسيږي؟ | ۸۴ ÷ ۲۱ = ۴ ، − ۸۴ ، ۰۰ |
| ۱۶) دتقسيم عمليې سرته ورسوي ۷۳۵ ÷ ۳۵ ، ۵۶۳ ÷ ۹۷ ، ۴۹۱ ÷ ۸۵ | ۷۳۵ ÷ ۳۵ = ۲۱ (− ۷۰ ، ۳۵ ، − ۳۵ ، ۰۰) ؛ ۵۶۳ ÷ ۹۷ = ۵ (− ۴۸۵)، ۷۸ ؛ ۵۶۳ مقسوم ، ۹۷ مقسوم عليه ، ۵ خارج قسمت ، ۷۸ باقی ؛ ۴۹۱ ÷ ۸۵ = ۵ (− ۴۲۵)، ۶۶ |

| پوښتنه | حل |
| --- | --- |
| ۱۷) دښوونځی د لومړی ټولګي دنوو شامل شوو زده کوونکو شمیر ۵۴۰ تنه دي که چیرې د هغه ښوونځي اداره په یوه ټولګي کې ۴۵ تنه شامل کړي د هر ټولګي د داخلي شمیر به څو وي؟ | ۵۴۰ \| ۴۵<br>− ۴۵ \| ۱۲<br>۹۰<br>− ۹۰<br>۰۰ |
| ۱۸) په یوه فابریکه کې ۱۲ ماشینونه په یوه دقیقه کې ۸۴ متره ټوکر اوبي، معلوم کړئ چې هر ماشین به په یوه دقیقه کې څو متره ټوکر تولید کړي؟ | ۸۴ \| ۱۲<br>− ۸۴ \| ۷<br>۰۰ |
| ۱۹) یوه ژرنده په ۶ دقیقو کې یو من غنم اوړه کوي. معلوم کړئ چې ۱۲۶۶ دقیقو کې به څو منه غنم اوړه کړي. | ۱۲۶۶ \| ۶<br>−۱۲ \| ۲۱۱<br>۶<br>− ۶<br>۰ |
| ۲۰) ۷۶۵۶ \| ۲۱ پوښتنه حل او امتحان یې کړئ. | ۷۶۵۶ \| ۲۱<br>−۶۳ \| ۳۶۴<br>۱۳۵<br>− ۱۲۶<br>۹۶<br>− ۸۴<br>۱۲<br><br>امتحان: ۳۶۴<br>× ۲۱<br>۳۶۴<br>+ ۷۲۸<br>۷۶۴۴<br><br>۷۶۴۴<br>+ ۱۲<br>۷۶۵۶ |
| ۲۱) ۷۵۲ \| ۴۷ پوښتنه حل او امتحان یې کړئ. | ۷۵۲ \| ۴۷<br>−۴۷ \| ۱۶<br>۲۸۲<br>− ۲۸۲<br>۰۰۰<br><br>امتحان: ۴۷<br>× ۱۶<br>۲۸۲<br>+ ۴۷<br>۷۵۲ |

# دریم څپرکی

## هندسه

### د څپرکي جوړښت




**ګرانو ښوونکو!**

تاسو به په دې څپرکی کې زده کوونکو ته د مضلع، مربع او مثلث د محیط په هکله او همدارنګه د سطح د واحد، د مساحتونو پیدا کول لکه مستطیل، مربع، د دایروي سطحی پیژندنه، قطر، شعاع او وتر په هکله عینی معلومات ورکړئ. د مثلث، مربع، مضلع او همدارنګه د سطحی د مساحتونو پیدا کول مساحتونو پیدا کول.

**د ښوونکي له پاره لازمي معلومات:**

د اوږدوالي د واحد بدلول د هغې یو ټیټ واحد ته، راکړل شوي واحد په ۱۰ کې ضربوو د بیلګي په توګه که وغواړو چې متر په دیسې متر بدل کړو په ۱۰ کې یې ضربوو او که چیرې دیسي متر په سانتي متر بدل کړو په لسو یې ضربوو او که وغواړو چې سانتي متر په ملی متر بدل کړو هغه هم په لسو کې ضربوو څکه چې.
۱۰ دیسي متر = ۱ متر

**۱۰ سانتي متر = ۱ ديسي متر**

**۱۰ ملي متر = ۱ سانتي متر**

**خو که چيرې وغواړو چې هکتومتر په کيلومتر بدل کړو يعنی يو کوچنۍ واحد په لوی واحد په سلسله او ترتيب سره بدل کړو پدې صورت کې هغه په لسو ويشو مثلاً که چيرې ديکامتر په هکتومتر بدل کړو په لسو يې ويشو. او په پای کې که چيرې وغواړو چې متر په ديکامتر بدل کړو بياهم په لسو يې ويشو. ځکه چې:**

**$\frac{۱}{۱۰}$ ديکامتر = ۱ متر**

**$\frac{۱}{۱۰}$ هکتو متر = ۱ ديکامتر**

**$\frac{۱}{۱۰}$ کيلومتر = ۱ هکتو متر**

**او يا په بل عبارت:**

**۱۰ متره = ۱ ديکامتر**

**۱۰ ديکامتر = ۱ هکتومتر**

**۱۰ هکتومتر = ۱ کيلومتر**

دروېشتم لوست

## سرلیک: د مثلث، د محیط پیدا کول

**مخ: ۸۲**
**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه يې)**

**موخې**

- پوهنيزي : زده کوونکي پوه شي چې د يوه مثلث د محيط مفهوم څه دی ؟
- مهارتی : زده کوونکي د مثلث محيط معلوم کړای شي.
- ذهنيتی : زده کوونکي د مثلث د محيط د پيدا کولو څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** محيط، مثلث، ضلع.
**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ډله ييز او انفرادي کار، توضيح او تشريح)
**د زده کړې درسی توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير.
**دلوست بهير:**

| وخت | دښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>– له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړی.<br><br>• د مثلث د محيط د پيدا کولو له پاره څه وکړو؟<br><br>– د درسي کتاب د (۸۲) مخ مثال په دې ډول پرتخته حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري او د مثال په حلولو کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ په دې معنا چې په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتني وکړئ او د قناعت وړ ځوابوته ترې لاس ته راوړي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وويشئ او د درسی کتاب د (۸۳) مخ فعاليت ورته ورکړئ ترڅو يو له بل سره په مشوره يې حل کړئ. د ډله ايزکار به ترڅ کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ايز کار کې برخه ولري.<br>د ډله ايزکار په پای کې د ډلو نماينده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختی پرمخ سرته رسولی فعاليت نوروته توضيح کړي. | – زده کوونکي له احوال پوښتنې څخه خوښيږي. دټولګي په پاکوالی کې ونډه اخلي، او ښوونکي ته کورنۍ دنده ښيي.<br><br>– زده کوونکی د ښوونکی پوښتنوته ځوابونه وايي<br><br>– زه کوونکي په ډلو کې فعاله ونډه اخلي او خپل نظرونه د ډلې دغړو سره شريکوي.<br>– د نورو ډلو نماينده ګانو توضيحاتوته غوږ نيسي. |

| | |
|---|---|
| | **ارزونه:**<br>• خوک ویلای شي چې دیوه مثلث د محیط پیدا کولو له پاره څه باید وکړو؟<br>• خوک کولای شي د یوه مثلث محیط چې ضلعې ئی په ترتیب سره:<br>الف ب = ٦سانتي متره،<br>ب ج = ٦ سانتي متره،<br>الف ج = ۴ سانتي متره وي پیدا کړي؟<br>• خوک ویلای شي چې دیوه مثلث د محیط پیدا کول په ورځني ژوند کې څه مرسته کوي؟<br>• په کور او چاپیریال کې د داسې شیانو او توکو نوم اخیستلای شئ چې د مثلث شکل ولري؟ |
| ۵ دقیقې | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې د مثلث د محیط د اندازه کولو لپاره لومړی یو مثلث رسم رسموو او هره ضلعه يې د خط کش په واسطه په هماغه ورکړل شوې اندازه رسموو او وروسته ټولې ضلعې سره جمع کوو.<br>مثلاً: الف ب ج مثلث لرو چې:<br>ا ج = ۵ سانتي متره<br>الف ب = ۷ سانتي متره،<br>ب ج = ۵ سانتي متره<br>سانتي متره ۵ = ا ج<br>سانتي متره ۵ = ب ج<br>۵ سانتي متره+ ۵سانتي متره+ ۷سانتي متره = ۱۷<br>اوس ددې مثلث محیط مساوي دی د مثلث د اضلاعو له اوږدوالي له مجموعی سره یعنی.<br>۷+۵+۵=۱۷ |




**کورنی دنده:**

– د درسي کتاب د (۸۳) مخ کورنۍ دنده سرته ورسوي.

**دویم درسي ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۸۴) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې کومې ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## پوښتنې

۱- درې اختیاري مثلثونه رسم او د ضلعو اوږدوالی یې د خط کش پواسطه اندازه او بیاد دې مثلثونو محیط پیدا کړئ.

۲- هر مثلث شکله شی چې په خپل چاپیریال کې یې وینی چې د ضلعو اوږدوالی یې د اندازه کولو وړ وي، محیط یې پیدا کړئ.

۳- لومړی د لاندنیو مثلثونو د ضلعو اوږدوالی د خط کش په واسطه معلوم کړئ، بیا د هغوی محیطونه پیدا کړئ په دې ډول چې د هر مثلث د ضلعو اوږدوالی سره جمع کړی د مثلث محیط لاسه راځی.

ج ا + ب ج + ا ب = ا ب ج د مثلث محیط



خلور ویشتم لوست

## سرلیک: د مستطیل د محیط پیدا کول

**مخ: ۸۵**

**مخ: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې**

- **پوهنیزي :** زده کوونکې دې د مستطیل د محیط په مفهوم پوه شي.
- **مهارتی :** زده کوونکي د مستطیل محیط په سمه توګه پیدا کړي.
- **ذهنیتی :** زده کوونکي د مستطیل د محیط له پیدا کولو څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** محیط، مستطیل.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه(ډله ییز او انفرادي کار، پوښتني او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندېه توکي:** پرکار، چارت (له کاغذ څخه جوړ شوې مستطیلونه)

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• د ( ا ب ج د ) شکل د څه په نوم یادیږي؟<br>• دغه هندسي شکل څو ضلعې لري؟<br>• ددغه هندسي شکل محیط څنګه پیدا کولی شو؟ | – په احوال پوښتنه خوشحالیږي او له ښوونکي سره هم احوال پوښتنه کوي او د ټولګي په تنظیم کې ونډه اخلې.<br>– د ښوونکي خرګندونو ته غوږ ږدې.<br>– ښوونکي ته ځوابونه ورکوې. |
| ۳۰ دقیقې | – د درسی کتاب د (۸۵) مخ لومړی مثال او د (۸٦) مخ دویم مثال د تختی پر مخ داسې حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه واخلي او دمثالو نو د حلولو په وخت کې دوی ته برخه ورکړئ په دې معنا چې په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې لاس ته راوړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۸٦) مخ فعالیتونه ورته وسپارئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړئ. د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راو غواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختي پرمخ هغه فعالیت چې یې سرته رسولی دی نوروته توضیح کړي. | – د مثال د حل په وخت کې ښوونکی توضیحاتوته غوږنیسی او لازم معلوماتوته حاصلوي.<br>– په ډله ایزکار کې فعاله ونډه واخلي او دپوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایزکار په وخت کې له کومې ستونزی سره مخامخ کیږي له ښوونکی مرسته غواړي.<br>– د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنی حل ته هم باید زده کوونکي پام وکړي. |

| | |
|---|---|
| ۵<br>دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د یوه مستطیل محیط څنګه پیدا کولای شو؟<br>• څوک د یوه مستطیل محیط چې اوږد والی یې ۷سانتي متره او سورېي ۵سانتي متره وي پیدا کولای شي.<br>• که چیرې د یو مستطیل شکل محیط پیدا نه کړای شو په ورځني ژوند کې به له څه ستونزو سره مخامخ شو؟ |
| ۵<br>دقیقې | **دلوست لنډیز:**<br>تاسو پدې لوست کې زده کړل چې مستطیل یو هندسي شکل دی چې څلور ضلعې لري او څلور زاويي لري. چې ضلعې یې دوه په دوه مساوي دي.<br><br>څنګه چې د یوه مستطیل محیط پیدا کولای شو مثلاً په لاندې ډول د (ا پ ج د) مستطیل را کړل شوی دی.<br>ب ۵ سانتی متر ا<br>۳ سانتی متر ۳ سانتی متر<br>د ۵ سانتی متر ج<br>ددی له پاره چې د مستطیل محیط پیدا کړو د اضلاعو اوږدوالی یې سره جمع کوو:<br>۱۶ سانتی متره = ۵ + ۳ + ۵ + ۳<br>نو ولیدل شول چې د ورکړل شوی مستطیل محیط ۱۶ سانتي متره دی. |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د درسی کتاب (۸٦) مخ کورنۍ ډنده په خپلو کتابچو کې سرته ورسوي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۸۷) مخ هره یوه پوښتنه د تختی پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د لاندې مستطیل محیط پیدا** کړی:




۱- سانتی متر ۱۲ = ۲ + ۴ + ۲ + ۴ = محیط مستطیل

## د پوښتنو حل

۲- یوه سپینه پاڼه چې د مستطیل شکل لري او ږدوالی او سوریې اندازه او محیط یې پیدا کړئ؟

۳- د خپل مېز د سطحې محیط پیدا کړئ؟

۴- د خپل ټولګي د تورې دړې محیط پیدا کړئ؟

۵- له کاغذ څخه په مختلفو اندازو سره مستطیلونه جوړ کړئ او بیا یې محیط پیدا کړئ.

نوټ: دهره زده کوونکی کار په جلا جلا ټوله وګورئ.

۶- د هغه مستطیل محیط پیدا کړئ چې اوږدوالي یې **۱۵** سانتي متره او سور یې ۱۰ سانتي متره وي.




سانتی متر ۵۰=۱۰+۱۰+۱۵+۱۵ = د مستطیل محیط

۷- که د یو مستطیل اوږدوالی **۹** سانتي متره او سور یې **۷** سانتي متره وي محیط یې پیدا کړئ.




سانتی متر ۳۲=۷+۷+۹+۹ = د مستطیل محیط

۸- یوه ټوټه ځمکه چې د مستطیل شکل لري که ددې ځمکې اوږدوالی **۲۵** متره او سور یې **۱۵** متره وي، ددې ځمکې محیط به څو متره وي؟




متر ۸۰ =۱۵+۱۵+۲۵+۲۵ = د ځمکی محیط

پنځه ویشتم لوست

# سرلیک: د مربع د محیط پیدا کول

**مخ: ۸۸**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې:**

- پوهنیزي : زده کوونکي دې د مربع د محیط په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي د مربع د محیط په پیدا کولو کې ستونزه ونه لرې.
- ذهنیتی : زده کوونکي د مربع محیط پیدا کولو په ترڅ کې خوښي احساس کړي.

**نوي اصطلاحات:** محیط، هندسي، اضلاع.

**د تدریس میتود:** فعاله زده کړه (انفرادي او ډله ییز کار، جر و بحث)، سؤال او ځواب

**د زده کړې مرستندوي توکي:** له کاغذ څخه جوړې شوې مربع ګانې چې کسري اضلاع ونه لري، پرکار (هندسي بکس)

**دلوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د مقدماتي فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته:<br>– له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>• د (ا ب ج د ) شکل د څه په نوم یادیږي؟<br>• دغه هندسي شکل څو ضلعې لري؟<br>• آیا ددغه شکل ټولې ضلعې یو له بله مساوي دي که توپیر لري؟<br>• ددغه هندسي شکل محیط څنګه پیدا کولای شو؟ | – په احوال پوښتنه څخه خوښیږي.<br>ښوونکی وینا ته غوږ ږدې.<br>– د مربع شکل ویني او ورسره اشنا کیږي او پوښتنو ته ځواب وایي.<br>کیدای شي د ځینو زده کوونکـــو ځـــواب قناعت بښوونکی نه وي پدې ډول ښوونکی زده کوونکو ته سم ځواب ورکوي. |
| ۳۰ دقیقې | – د درسي کتاب د (۸۸) مخ لومړی مثال او د (۸۹) مخ دویم مثال پرتخته داسې حل کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. او د مثالونو د حلولو په وخت کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ په دې معناچې په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ خوابونه ترې لاس ته راوړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسی کتاب د(۸۹) مخ فعالیت هغوي ته ورکړئ ترڅو یو د بل سره په مشوره یې حل کړي او د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ تر څو په خپل وارسره هغه فعالیت چې یې سرته رسولی دی نوروته توضیح کړي. | – د مثال د حلولو په وخت کې د ښوونکی توضیحاتوته غوږ نیسي او ورمعلوماتونه حاصلوي.<br>– په ډله ایزکارو نو کې فعاله ونډه اخلي او دپوښتنو دحلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایزکار په وخت کې له ستونزي سره مخامخ شي له ښوونکی مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنې حلولو ته پاملرنه کوي. |

| وخت | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د یو هندسي شکل محیط څنګه پیدا کیږي؟<br>• څوک د یوې مربع محیط چې هره ضلعه یې ۵ سانتی متره وي حسابولای شي؟<br>• څوک ویلای شي چې ستاسو د ټولګې توره تخته مربع ده که مستطیل؟<br>• څوک د ټولګی د تختې محیط حسابولای شي؟<br>• آیا زده کوونکي د یوې مربع شکل د محیط له پیدا کولو څخه د خوښی احساس کوي؟<br><br>**د لوست لنډیز:**<br>مربع یو هندسې شکل دی چې مساوي ضلعې لري.دیوې مربع د ضلعو د پیدا کولو له پاره د هغې ضلعي سره جمع کوو.<br>یوه مربع د الفبا د تورو پواسطه ښیو لکه لاندې شکل. مثلاً:<br>لاندې شکل په پام کې ونیسئ:<br>ا ب ج د     ا ب ج د |
| ۵ دقیقې | په پورته شکل کې د هغې کنجونه د (ا ب ج د) په تورو ښودل شوی دی چې د ( ا ب ج د) مربع لوستل کیږي. |

**کورنۍ دنده:**

– د لاندې مربع محیط پیدا کړئ.




**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقی | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۹۰) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

# دکورنۍ دندې حل




سانتی متر ۸= ۲ سانتی + ۲سانتی+۲ سانتی+ ۲سانتی = دمربع محیط

## د پوښتنو حل

۱- د هغه مربع محیط پیدا کړئ چې هره ضلعه یې **۵** سانتي متره وي.




**۲**-




**۳- له کاغذ څخه په مختلفو اندازو سره ۴ مربعګانې جوړې کړئ، بیا د مربعګانو د ضلعو اوږدوالی د خط کش په واسطه پیدا کړئ او بیا یې محیطونه هم پیدا کړئ.**

**د مثال په ډول:**




**۴**-



**۵-**




**سانتی متر ۴۸ = ۱۲ سانتی + ۱۲سانتی+۱۲ سانتی+ ۱۲سانتی = د مربع محیط**

**۶-**




**سانتی متر ۶۰ = ۱۵ سانتی + ۱۵سانتی+۱۵ سانتی+ ۱۵سانتی = د مربع محیط**

شپږ ویشتم لوست

# عنوان: د پنځه ضلعی د محیط اندازه کول

**مخ: ۹۱**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې :**

- پوهنیزي : زده کوونکي د پنځه ضلعی د محیط په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي وتوانیزی چې د یوې پنځه ضلعی محیط په سمه توګه پیدا کړي.
- ذهنیتی : زده کوونکي د پنځه ضلعی د محیط په پیدا کولو د خوښۍ احساس وکړي.

**نوي اصطلاحات:** مضلع، محیط.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار، سوال او ځواب)

**د زده کړې درسی توکي:** تخته، تباشیر، کتاب

**د لوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته : له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي: <br>• آیا داسې شکل پیژنئ چې د څلور ضلعو څخه ډیرې ضلعې ولري د هغه نوم به څه وي؟ | – زده کوونکي په احوال پوښتنه خوشحالیږي. د ټولګي په تنظیم کې مرسته کوي او ځان درس ته چمتو کوي. |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکي دې د ۷۳ مخ د مضلع د شکلونو اړوند چارتونه د ټولګي په مخ کې ځوړند کړي او څرګندونې دې وکړي او ورسره سم دې زده کوونکو ته هم ونډه ورکړي. <br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ: <br>• د (ا ب ج د هـ) شکل د څه په نامه یادیږي؟ <br>• آیا د پنځه ضلعی ټولی ضلعی سره مساوی او موازی وي او یا سره کیدای شی چې توپیر ولری؟ <br>• ددغه هندسي شکل محیط څنګه معلومولی شئ؟ <br>– د درسي کتاب د (۹۱) مخ مثال د تختی پرمخ په دې ډول چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري حل کړئ او د مثال په حلولوکې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ په دی معنا چې په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتني وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه په لاس راوړئ. <br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۹۲) مخ فعالیتونه ورته ورکړئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل کړي. <br>د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو زده کوونکي | – زده کوونکي ځواب ورکوي. <br><br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونې په ځیر سره اوري که سوال ولري له ښوونکي مرسته غواړي. <br><br>– په ډلو کې خپل نظریات نوروسره شریکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وار سره سرته رسولی فعالیت د تختی پرمخ نورو ته توضیح کړي. | – د ډلو دنماینده ګانو توضیحاتوته غوږ نیسي |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د (ا ب ج د هـ) مضلع څو ضلعې لري؟<br>• څوک د رسم شوی مضلع محیط ښودلای شي؟<br>ب ، ا ، ج ، د ، ه<br>۲ سانتی متره ، ۲ سانتی متره ، ۵ سانتی متره ، ۳ سانتی متره ، ۴ سانتی متره<br>• که چیرې مونږ د یوې مضلع محیط محاسبه نه کړای شو په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخ شو؟<br>**د لوست لنډیز:**<br>تاسو زده کړل چې یوه مضلع له څو قطعه خطونو څخه جوړه شوې ده. که چیرې دغه قطعه خطونه اندازه او سره جمع کړو. | |
| ۵ دقیقې | په نتیجه کې د مضلع محیط معلومیږي. تاسو زده کړل چې هره مضلع د الفبا د تورو پواسطه ښودل کیږي او توري دمضلع په کونجونو کې لیکل کیږي لکه د ا ب ج مثلاً د ا ب ج د مربع، د ا، ب، ج، د، هـ مضلع | |

**کورنۍ دنده:** د کتاب په ۹۲ مخ کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې حل او ویې لیکئ.

اووه ویشتم لوست

# عنوان: د شپږ ضلعي د محیط اندازه کول

**مخ:** ( ۹۳ )
**وقت:** ۲ درسي ساعت (۴۵ دقیقه یي)

**موخې:**

- **پوهنیزي:** زده کوونکي د شپږ ضلعي د محیط په مفهوم وپوهیږي.
- **مهارتي:** زده کوونکي و کولای شي د شپږ ضلعي محیط پیدا کړي.
- **ذهنيتي:** زده کوونکي دشپږ ضلعي د محیط په پیدا کولو سره د خوښي احساس وکړي.

**د تدریس طریقې:** فعاله زده کړه، ( ډله ایزکار، یوازې کار، پوښتني او ځوابونه:
**درسي توکي:** تخته ، تباشیر، کتاب ، خط کش او نور
**د لوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته له زده کوونکو وپوښتني:<br><br>• آیا ویلای شی چې شپږ ضلعي کوم هندسي شکل ته وایي<br>• څه فکر کوي چې هر وخت د شپږ ضلعي ټولي ضلعی سره مساوي وي؟<br>• څوک ویلای شي چې د شپږ ضلعي محیط څرنگه پیدا کیږي. | – د ښوونکی له احوال پوښتني څخه د خوښي احساس کوي.<br><br>– د ښوونکی پوښتنوته ځواب وایي. |
| ۳۰ دقیقې | – د درسي کتاب د (۹۳) مخ مثال په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي هم په کې فعاله ونډه ولري. او د مثال د حلو لو په وخت کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ. یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښته وکړئ او د قناعت وړځوابونه ترې ترلاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۹۴) مخ فعالیت ورته وروسپارئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل کړي د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده گان را وغواړئ چې په خپل وارسره سرته رسولی فعالیت د تختې پرمخ نورروته توضیح کړي. | – د مثال دحلولو په وخت کې د ښوونکی توضیحاتوته غوږ نیسي او لازم معلوماتوته ترلاسه کوي او د ښوونکی پوښتنوته ځواب وایي.<br><br>– په ډله ایزکارکې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو دحلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br><br>– د نورو ډلو دنماینده گانو د پوښتني حل ته هم پاملرنه کوي. |

<table>
<tr><td>5<br>دقیقي</td><td>ارزونه:<br>• څوک ویلای شي چې د ( ا ، ب ، ج ، د ، هـ ، ز ) شکل څو ضلعي لري ؟<br>• څوک کولای شي د رسم شوې شپږ ضلعی محیط پیدا کړي؟<br><br>ا ، ب ، ج ، د ، هـ ، ز<br>۳ سانتی متر<br>۳ سانتی متر<br>۲ سانتی متر<br>۲ سانتی متر<br>۳ سانتی متر<br>۳ سانتی متر<br><br>• که چیرې مونږ ونه شو کولای چې دیوې شپږ ضلعی محیط حساب کړو په ورځنی ژوند کې له کومې ستونزي سره مخامخ کیږو ؟</td></tr>
<tr><td>5<br>دقیقي</td><td>د لوست لنډیز:<br>تاسو زده کړه چې شپږ ضلعی د شپږو قطعه خطونو پواسطه محدود شوي ده او کله چې د اقطعه خطونه اندازه او سره جمع يې کړو د شپږ ضلعی محیط لاس ته راځي.<br><br>تاسوو پوهیدی چې هره شپږ ضلعي د الفبا د تورو په واسطه چې په راسو نوکې يې لیکل کیږي ښودل کیږي لکه : د (ا ب ج د هـ ز ) شپږ ضلعی.</td></tr>
</table>

**کورنۍ دنده :**

زده کوونکي دې د درسی کتاب د (۹۴) مخ کورنۍ دنده سرته ورسوی.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقه | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۹۵) مخ هره یوه پوښتنه د تختی پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## د پوښتنو حل

۱- د هغه مثلث محیط پیدا کړئ چې د ضلعو اوږدوالی یې ۲، ۸، ۱۰ سانتي متره وي.




سانتی متر ۲۴ = ۱۰سانتی+۸ سانتی +٦سانتی = د مثلث محیط

۲- دهغې مربع د محیط اوږدوالی پیداکړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې **۵** سانتي متره وي.




سانتی متر ۲۰ =٥ سانتی + ٥سانتی+٥ سانتی+٥سانتی = د مربع محیط

۳- د مستطیل محیط پیداکړئ چې اوږدوالی یې **۲** سانتي متره او سور یې **۴** سانتي متره وي.




سانتی متر ۲۰ =٦ سانتی + ۴سانتی+٦ سانتی +۴سانتی = د مربع محیط

۴- د هغه مربع محیط پیدا کړئ چې د یوې ضلعې اوږدوالی یې ۸ سانتي متره وي.




۵- د هغې مستطیل محیط پیداکړئ چې اوږدوالی یې ۸ سانتي متره او سوریې **۵** سانتي متره وي.




سانتی متر ۲٦ = ۵ سانتی متر +۸ سانتر متر+۵ سانتی متر +۸ سانتی متر = د مستطیل محیط

**٦**- دهغی مضلی محیط پیدا کړی چې د ضلعو اوږدوالی یی ۱ ، ۲ ، ۳ ، ۲ ، ۳ سانتی متر وي.

سانتی متر ۱۰ = ۳ سانتی متر +۲ سانتی متر+۲ سانتی متر +۱ سانتی متر = د پنځه ضلعی محیط



اته ویشتم لوست

# سرلیک: د سطحې پېژندنه

**مخې: ۹۶**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې :**

- پوهنیزي : زده کوونکي دې سطحی مفهوم سمه وپیژني.
- مهارتي : زده کوونکي پوه شي چې کومې سطحې ته هموار ه سطحه وايي.
- ذهنیتي : زده کوونکي دې د هموارې سطحې د پیژندګلوو څخه د خوښۍ احساس وکړي.

**نوي اصطلاحات:** سطحه، هموار ه سطحه.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې درسی توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر .

**دلوست بهیر:**

| وقت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو سرته رسولو څخه وروسته :<br><br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• تاسو هر یو خپل لاس په میز کیږدئ او یوې خواته یې کش کړئ ووایئ چې څه احساسوئ؟<br>• ستاسو د میز د پاسه همدغه ساحه د څه په نامه یادیږي؟<br>• دټولګی د دیوال د پاسه لاس ورتیر کړئ او ووایئ چې د هغه دیوال سطحه د څه په نامه یادوی؟ | – زده کوونکي له احوال پوښتنې نه خوشحالیږي. او له ښوونکي سره هم احوال پوښتنه کوي. دټولګي په تنظیم کې ونډه اخلې او ځان لوست ته تیاروي.<br><br>– د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۳۰ دقیقې | • که چیرې خط کش پر میزباندې کیږدو دغې سطحې ته څه وایي؟<br>– د د رسی کتاب د (۹۷) مخ مثال زده کوونکوته داسی توضیح کړي چې زده کوونکی هم فعاله ونډه ولری.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویش او د درسی کتاب د (۹۷) مخ فعالیت هغوي ته ورکړئ چې سرته یې روسوی له ډلو څخه څارنه وکړی. | – زده کوونکي د ښوونکي هرې پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br><br>– زده کوونکو په دلو کې خپل نظریي نورو سره شریکوي. |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>• څوک د هوارې سطحې مثال ویلای شي؟<br>• څوک په ټولګي کې یوه هواره سطحه ښودلی شي؟<br>• څوک ویلای شي چې د سطحې پیژندنه په ورځني ژوند کې څه ګټه لري؟<br><br>**دلوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې سطحه څه شی ده او د کومو شیانو سطحه هواره ده. دغه راز تاسو د میز، کتاب، کتابچې او د ټولګي ددیوال سطحې وپیژندلې مور هغې سطحې ته هواره سطحه وایو چې خط کش ورباندی کیږدو ټولې نقطې یې له خط کش سره تماس پیدا کړي. | |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکې دې د درسی کتاب د ۹۷ مخ کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې ولیکي. بیا دې د هغو ځوابونه پیداکړي.

نه ویشتم لوست

## سر لیک: دایره ، دایر وي سطحې، د قطر، شعاع او وتر پېژندنه

**مخې: ۹۸**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یی)**

**موخې :**

- پوهنیزي : زده کوونکي دایره، دایروي سطحه، قطر او وتر په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي د دایرې شعاع، قطر، او وتر تشخیص کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکي د دایرې او د هغې د جزونو په پېژندولو څخه د خوښۍ احساس کړي.

**نوی اصطلاحات:** دایره، دایره وي سطحه، قطر، شعاع او وتر.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (انفرادی او ډله ییز کار)

**د زده کړې درسي توکي:** کتاب، تباشیر، تخته، د پرکار قطی،

**د لوست بهیر:**

| وخت | ښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونو څخه پوښتنی :<br>• فلزی سکه څه ډول شکل لري؟<br>• څوک د دایره وی شکلونو نوم اخیستلی شي؟<br>• ستاسو په فکر د بایسکل او موتر ټایرونه څه ډول شکل لري؟<br><br>– درسي کتاب (۹۸) مخ شکلونه دتختی پرمخ داسې توضیح کړئ چې زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري یعنی په هر برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړځوابونه ترلاسه کړي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د (۹۹) مخ فعالیت ورته وسپارئ ترڅو یو د بل په مشوره سره یې حل کړي. د ډله ایزکار دکولو په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي.<br><br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده گان راوغواړئ ترڅو سرته رسولی فعالیت د تختی پرمخ نوروته توضیح کړئ. | – له احوال پوښتنې خوښیږي، د ټولګی په تنظیم او کورنۍ کار په راوړلو کې خپله ونده پرځای کوی. او د کورني کار کتابچې د ښوونکي دکتلولپاره دمېزپرمخ باندې ږدی.<br><br>– زده کوونکي خپل لاسونه پورته کوي. هغه زده کوونکي چې د ښوونکی له خوا ټاکل کیږي ځواب ورکوي.<br><br>– په ډلوکې په مشوره سره فعالیت سرته رسوي.<br>او همدارنگه له هرې ډلی یونماینده د خپلی ډلی فعالیت نورو ډلو ته توضیح کوي. |

<table>
<tr><td>۵ دقیقې</td><td>

**ارزونه:**

- څوک ویلای شي چې دایره څه شی ده او څنګه شکل لري؟
- څوک ویلای شي چې د دایرې شعاع، قطر او وتر څه شی دي؟
- څوک د تختې پر مخ دایره رسمولای شي؟ وروسته یې شعاع، قطر او وتر په ترتیب رسم او نورو ته یې وښایاست؟
- د دایرې، دایروي سطحې، قطر او وتر په پېژندلو سره څه احساس کوئ؟

</td></tr>
<tr><td>۵ دقیقې</td><td>

**د لوست لنډیز:**

تاسو زده کړل چې دایره څه ته وائي، دایروي سطحه څه ده، قطر، شعاع او بلاخره د دایرې وتر څه شی دي؟

دغه دایره ده



خط، خط شوې پرخه دایروي سطحه ده






لکه څنګه چې ګورئ د دایرې قطر د وړانګې یا شعاع دوه برابره دی.

</td></tr>
</table>

**کورنۍ دنده:**

- د درسي کتاب د ۹۹ مخ کورنۍ دنده تر سره کړئ.

دیرشم لوست

## سر لیک: د سطحې د واحد پېژندنه او د مربع مساحت پیدا کول

**مخې: ۱۰۰**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یی)**

**موخه :**

- پوهنیزي : زده کوونکي د سطحی د واحد وپیژني او مربع مساحت پیدا کول په مفهوم بي پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي د یوې مربع مساحت پیدا کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکي د مربع د مساحت له پیدا کولو څخه خوند واخلی او په ورځنی ژوند تري ګټه واخلي.

**نوي اصطلاحات:** سطحه، د سطحې واحد، مربع، مستطیل.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندویه توکي:** خط کش، کاغذ ګراف، پرکار (هندسي بکسه)

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>● دسطحی د اندازه کولو واحد څه نومیږي؟<br>● یو سانتي متر مربع څه اندازه سطحه ده؟ | – زده کوونکي له احوال پوښتنې خوښیږي د ټولګي په تنظیم او کورني کار د ښودلو لپاره چمتو کیږي |
| ۳۰ دقیقې | – د درسي کتاب د (۱۰۰) مخ مثال د تختې پر مخ داسې حل کړئ چې زده کوونکي ونډه و لري او د مثال د حل په وخت کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه لاس ته راوړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشی او د (۱۰۱) مخ فعالیت ورته وسپارئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړې د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ تر څو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه واخلي.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راو غواړی ترڅو پر تخته خپل سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړي. | – د ښوونکي پوښتوته ځواب وایي.<br>– د ښوونکي څرګندولو ته غوږ ږدې.<br>– د ښوونکی توضیحاتوپه غوږ نیسي او که کومه پوښتنه لري له ښوونکی پوښتنه کوي اوهم د ښوونکی پوښتنوته ځواب وایي.<br>– په ډله ایزکارونوکې فعاله ونډه اخلي.<br>– د ډله ایزکار په وخت کې خپل نظرونه د ډلې له غړو سره شریکوي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو توضیحاتوته په غور سره غوږ نیسي. |

| | |
|---|---|
| ۵<br>دقيقې | **ارزونه:**<br>**څوک ويلای شي چې د مربع مساحت له څه شي سره مساوي دی؟**<br>**څوک د هغې مربع مساحت معلومولی شي چې د يوې ضلعې اوږدوالی يې (۵) سانتی متره وي؟**<br>**څوک ويلای شي چې د مربع په مساحت پوهيدل په ورځنی ژوند کې څه ګټه لري؟** |
| ۵<br>دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>**تاسو پدی لوست کې زده کړل چې د سطحې واحد متر مربع دی. او هم پوه شوی چې يو سانتی متر مربع له هغې مربع څخه عبارت ده چې هره ضلعه يې يو سانتی متر وي او هم مو زده کړل چې د يوې مربع مساحت څنګه پيدا کولای شو.**<br>**مثلاً:**<br>ا ۶ سانتی متر ب<br>۶ سانتی متر ۶ سانتی متر<br>د ۶ سانتی متر ج<br>**د (ا ب ج د) د مربع مساحت يا پراخوالی عبارت دی له**<br>**ضلع × ضلع = د مربع مساحت**<br>**سانتی متر مربع ۳۶ = ۶ × ۶** |

**کورنۍ دنده:**

**– زده کوونکی د درسی د (۱۰۲) مخ کورنۍ دنده تر سره کړئ.**

**دويم درسی ساعت (۴۵ دقيقه)**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقيقه | **– د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۱۰۲) مخ هره يوه پوښتنه د تختی پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ.** | **– هغه زده کوونکي چه د پوښتنی حل لپاره تختی ته را بلل کيږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي.** |

## د پوښتنې حل

۱- د هغې مربع مساحت پیداکړئ چې د یوې ضلعې اوږدوالی یې ۷ سانتي متره وي؟




۴۹ سانتي متر مربع = ۷ سانتي × ۷ سانتي = د مربع محیط

۲- دهغې مربع مساحت پیدا کړئ چې د هرې ضلعې اوږدولی یې ۸ سانتي متره وي؟




٦۴ سانتي متر مربع = ۸ سانتي متر × ۸ سانتر متر = د مربع محیط

۳- د هغې مربع مساحت پیداکړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۱۰ سانتي متره وي؟




۱۰۰ سانتي متر مربع = ۱۰ سانتي × ۱۰ سانتي = د مربع محیط

۴- که د یوې مربع د یوې ضلعې اوږدوالي ٦ سانتي متره وي، ددې مربع مساحت پیدا کړئ




۳٦ سانتي متر مربع = ٦ سانتي × ٦ سانتي = د مربع محیط

**یو دیریشتم لوست**

## سر لیک: د مستطیل د مساحت پیدا کول

**مخ: ۱۰۳**

**وخت: ۲ درسی ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې :**

- پوهنیزي : زده کوونکو د مستطیل د مساحت په مفهوم پوه شي.
- مهارت : زده کوونکي د مستطیل مساحت پیدا کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکې د مساحت د پیدا کېدو څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** د سطحي واحد، د مستطیل مساحت، ضلعي، د مستطیل سور، د مستطیل اوږدوالی.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ګروپي او انفرادي کار، پوښتني او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندوی توکي:** خط کش، د ګراف کاغذ.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>– له زده کوونکو پوښتنه وکړئ:<br>• د (ا ب ج د) مستطیل له څو مربع ګانو څخه جوړ شوي دی؟<br>• د مستطیل کومې ضلعې ته اوږدوالی (طول) او کومې ته سور وایي؟<br>• د دغه مستطیل مساحت به د شکل له مخې څومره وي؟<br>د مستطیل مساحت = طول × عرض<br>نوموړې اړیکه رابطه دې ښوونکي، زده کوونکو ته توضیح کړي. | – زده کوونکي په احوال پوښتنه خوښیږي. د ټولګي په نظم او د کورني کار په راوړلو کې مرسته کوي او د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسی.<br>– زده کوونکي ښوونکي ته ځواب ورکوي که ستونزه ولري پوښتنه کوي. |
| ۳۰ دقیقې | – د درسي کتاب د (۱۰۳ ) مخ مثال د تختې پر مخ په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي هم په کې ونډه ولري په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړي او د قناعت وړځوابونه ترې ترلاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د(۱۰۴) مخ فعالیت دوي ته ور وسپارئ ترڅو یو له بل سره په مشوره یې حل کړي او د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري.<br>د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو د تختې پرمخ سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړئ. | – د مثال دحلولو په وخت کې د ښوونکی توضیحاتوته غوږ نیسی او لازم معلومات حاصلوي.<br>– په ډله ایزوکارونو کې فعاله ونډه اخلی. او د پوښتنو په حلولو کې خپل نظرونه نور سره شریک کړي.<br>– زده کوونکي دې د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنی حل ته هم پاملرنه وکړي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>● د (ا ب ج د) شکل څه نومیږي؟<br>ب ا ج د<br>● دمستطیل اوږدې او لنډې ضلعې د څه په نامه یادیږي؟<br>● د مستطیل د مساحت فورمول ولیکئ<br>● د پورته مستطیل د شکل اضلاع د مربع له اضلاع سره پرتله کړئ؟<br>ب ا ج د<br>● د مستطیل او مربع له پرتله کولو څخه څه توپیر تر نظره شو؟ |
| ۵ قیقې | **د لوست لنډیز:**<br>له نني لوست څخه مو زده کړل چې د (ا ب ج د) شکل د مستطیل په نامه یادیږي او هم مو زده کړل چې د مستطیل اوږدې ضلعې ته طول یا اوږدوالی او لنډې ضلعې ته ئې عرض یا (سور) وائي. د مستطیل او مربع توپیر دا دی چې په مربع کې څلور واړه ضلعې سره مساوي وي او په مستطیل کې ضلعې دوه په دوه مساوي وې.<br>تاسو د مستطیل مساحت زده کړ چې طول × عرض دی. |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د درسي کتاب د (۱۰۴) د کورنۍ دندې پوښتني په خپل کتابچوکې حل کړئ.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقی | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۱۰۴ ) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

## د پوښتنو حل

۱- د هغه مثلث محیط پیدا کړئ چې د ضلعو اوږدوالي یې په ترتیب سره **۵**، **۷**، **۹** سانتي متره وي؟

| ۲۱ سانتی متر مربع = ۵ سانتی متر × ۷ سانتر متر+ ۹ سانتی متر = د مثلث محیط |
|---|

۲- د هغه مربع محیط پیدا کړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې **۳** سانتي متره وي؟

| ۱۲ سانتی متر = ۳ سانتی متر + ۳ سانتر متر+ ۳ سانتی متر + ۳ سانتی متر = د مربع محیط |
|---|

۳- دهغه مستطیل محیط پیدا کړئ چې اوږدوالی یې **۲** سانتي متره او سور یې **۴** سانتي متره وي؟

**۴**- یوه پنځه ضلعي رسم، د هرې ضلعې د اوږدوالي له پیدا کولو وروسته یې محیط پیدا کړئ؟

**۵**- یوه شپږ ضلعي رسم کړئ د شپږو واړو ضلعو اوږدوالی او محیط یې پیدا کړئ؟

۶- د هغه مستطیل مساحت پیدا کړئ چې اوږدوالي یې **۹** سانتي متره او سور یې **۵** سانتي متره وي؟

| ۴۵ سانتی متر مربع = ۵ سانتی متر × ۹ سانتر متر = د مستطیل محیط |
|---|

# د دريم څپرکی د پای د اضافی پوښتنو ځوابونه

| پوښتنې | ځوابونه |
|---|---|
| ۱) په لاندی شکل کې د (ا ب ج) مثلث ورکول شوی دی د هغه محیط حساب کړئ.<br>ا<br>۵ سانتی متر<br>۳ سانتی متر<br>ب ج<br>۶ سانتی متر | ۱۴ سانتی =۳+۶+۵= د (ا ب ج) مثلث محیط. |
| ۲) په خط کش باندی په خپله خوښه دوه مثلثونه رسم کړئ او بیایې محیط محاسبه کړئ. | د کار په بهیر کې د اختیاری مثلثونو له ترسیم څخه. وروسته پخپله ځواب پیدا کوي. |
| ۳) لاندې مربع وګورئ او د هغې محیط حساب کړئ.<br>۱ سانتی متر<br>ب ا<br>۱ سانتی متر<br>ج د | ۵+۵+۵+۵ = د (ا ب ج د) د مربع محیط = ۲۰ سانتي متر |
| ۴) اول یوه مربع رسم کړئ بیا اندازه کړئ د هغې ضلعې د خط کش پواسطه وټاکئ او محیط یې پیدا کړئ. | د مربع له ر سمولو څخه وروسته زده کوونکي پخپله ځواب پیدا کولای شي مثلاً که د مربع د ضلعو اوږدوالی د خط کش پواسطه ۲ سانتي او ۳ ملي و تقریبی هغه ۲ سانتي متر او که چیرې ۲ سانتی او ۲ ملي وه هغه ۳ سانتي په پام کې ونیسئ. |
| ۵) ووایئ چې د یوه مستطیل محیط له څه شي څخه عبارت دی؟ | د مستطیل محیط د اضلاعو د اوږودوالي له جمع کولو څخه لاس ته راځي. |
| ۶) که د یوه مستطیل اوږدوالی ۱۲ سانتي متره او سورېې ۴ سانتي متره دي محیط یې څو سانتي متره کیږې؟ | ۳۶ سانتی متره =۶+۱۲+۶+۱۲= د مستطیل محیط |

| پوښتنه | ځواب |
| --- | --- |
| ۷) د مستطیل او مر بع تر منځ توپیر په لنډ ډول ووایئ؟ | په مربع کې څلور ضلعې مساوي وي او په مستطیل کې ضلعې دوه په دوه مساوي وي. |
| ۸) دغه شکل یوه مضلع ده محیط یې پیدا کړئ.<br>ا، ب، ج، د، هـ<br>۳ سانتی متر، ۲ سانتی متر، ۴ سانتی متر، ۳ سانتی متر، ۲ سانتی متر | ۱۳سانتی متره =۲ + ۲ + ۴ + ۲ + ۳ = د (ا ب ج د هـ) مضلع محیط |
| ۹) هواره سطحه څه ډول سطحې ته وايي؟ | هغه سطحه ده چې په مخ یې خط کش کیږدو ټولې نقطې د خط کش په سطحې تماس پیدا کړي. |
| ۱۰) یوه دایره ر سم کړئ او مرکز یې په نښه کړئ؟ | د دایري مرکز<br>الف |
| ۱۱) د دایرې شعاع او قطر څه توپیر لري؟ | په یوه دایره کې قطر د شعاع دوه برابره دی. |
| ۱۲)په یوه دایره کې وتر اوشعاع رسم کړئ او هر یوه ته خپل نوم ولیکئ. | ب، ج، د<br>شعاع<br>الف<br>وتر |
| ۱۳)د سطحې واحد څه شی دی نوم یې واخلئ؟ | د سطحې واحد متر مربع دی. |
| ۱۴)د مربع یوه ضلع (۷) سانتي متره ده مساحت یې پیدا کړئ؟ | ۴۹ سانتی متر مربع = ۷ × ۷ = د مربع مساحت |
| ۱۵)د یوه مستطیل اوږدوالی (۱۵) سانتي متره او سوريې (۲) سانتي متره دی مساحت یې محاسبه کړئ. | ۳۰ سانتی متر مربع =۲×۱۵ = د مستطیل مساحت |

# څلورم څپرکی

## عام کسر

### د څپرکی جوړښت




**ګرانو ښوونکو!**

زده کوونکي پدې څپرکي کې دکسر دمفهوم، د کسر د صورت او مخرج،کسري خط، دهغو کسرونو د پرتله کولو په هکله چې مساوي مخرجونه ولري اودغه راز د نوموړو کسرونو د تفریق په هکله معلومات تر لاسه کوي

**د درسي ساعتونو شمېر: ۱۵ درسي ساعتونه**

**د ښوونکي له پاره لازمي معلومات:**

باید په پام کې ولرو چې په عام کسرونوکې یوازې هغه کسرونه چې هم مخرجه وي او په هغوي باندې د جمع او تفریق د عملیو سرته رسول وي، نه دي بلکې داسې کسرونه هم شته چې نه مساوي مخرجونه لري اونه هم مساوي صورروتونه لري لکه د $\frac{1}{2}$ او $\frac{3}{4}$ کسرونه د پورتنیو دووکسرونو له پاره چې کوم یو لوی او کوم کوچنی دی ، لومړی هغوی هم مخرجه کوو اوددغه کار له پاره لاندې ټکي په پام کې نیسو:

۱) ددویم کسر صورت اومخرج دلومړی کسر په مخرج کې ضربوویعنې :

$$\frac{1}{2}\times\frac{4}{4}=\frac{4}{8}$$

۲) ددویم کسر صورت اومخرج دلومړی کسر په مخرج کې ضربوو یعنې:

$$\frac{3}{4}\times\frac{2}{2}=\frac{6}{8}$$

۳) څرنگه چې دواړه کسرونه هم مخرج شول اوس یې پرتله کول اسانه دي اومخکې مو لوستلي دي نولدې امله $\frac{6}{8}>\frac{4}{8}$ څخه نو $\frac{3}{4}>\frac{1}{2}$ کېږي.

باید یادونه وکړو چې دپورتنیو کسرونوپه څېر دمختلفو کسرونو دجمع اوتفریق له پاره لومړی هغوی هم مخرجه کوو وروسته دجمع اویا تفریق عملیه سرته رسوو ته رسوو.

دوه دیرشم لوست

## سرلیک: د کسر د صورت، مخرج او کسري خط (بر خط) مفهوم

**مخې: ۱۰۵**

**وخت: ۲ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یی)**

**موخې :**

- پوهنیزي: زده کوونکي دکسر په ، صورت اومخرج په مفهوم پوه شي.
- مهارتي:زده کوونکي کسري خط د کسر صورت او مخرج تشخیص کړای شي.
- ذهنیتي زده کوونکي د کسر د صورت، مخرج او د بر په خط په پوهېدو سره خوشحاله شي.

**نوي اصطلاحات:** (کسر، دکسر صورت ، دکسر مخرج، کسري خط)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز اوانفرادي کار ، پوښتنې او ځوابونه ).

**د زده کړې مرستندویه توکي:** (چارت، د کتاب د (۱۰۵) مخ، کوچني اولوی کارتونه چې په هغوکې کسر ښودل شوی وي).

**دلوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br><br>له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې .<br>● په شکل کې دایره په څوبرخو ویشل شوې ده؟<br>● د دایرې څو برخې تورې شوي دي؟<br>– د درسي کتاب د (۱۰۵) مخ شکل پر تخته داسې توضیح کړئ چې زده کوونکي هم په کې فعاله ونډه واخلي. او د توضیح کولو په وخت کې زده کوونکوته هم ونډه ورکړئ یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو و پوښتنئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې ترلاسه کړئ. | – زده کوونکي په سلام اچولو ،دټولګي په تنظیم اودکورني کار په لیدلو خوښیږي. اودوروستنیو فعالیتونو له پاره هڅول کیږي<br><br>– ښوونکی څرګندونو ته غوږنیسي.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br><br>– د ښوونکی توضیحاتوته غوږ ونیسئ او وړ معلوماتوته ترلاسه کړئ.<br>په دله ایزکار کې فعاله ونډه واخلي. او و د پوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریک کړي. |
| ۳۰ دقیقې | – زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د(۱۰٦) مخ فعالیتونه ورته ورکړئ تر څو یو د بل په مشوره یې حل کړي. د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو په ډله ایزکار کې ټول زده کوونکي ونډه ولري.<br>– د ډله یزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختې پرمخ د خپل فعالیت نتیجه نورو ته توضیح کړي. | – زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنې حل ته هم باید پاملرنه وکړي.<br>– هرې ډلې نماینده دې سرته رسولی فعالیت د ټولګی په مخکې نوروته توضیح کړي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک د $\frac{۲}{۴}$ کسر په شکل کې ښودلای شي؟<br>• څوک ویلای شي چې د $\frac{۵}{۸}$ په کسر کې ۵دځه په نامه ۸، دځه په نامه یادیږي او کسري خط کوم دی؟<br>• څوک ویلای شي چې که چیرې په کسر پوه نه شو په ورځنیو چاروکې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟ |
| ۵ دقیقې | **دلوست لنډیز:**<br>له نني لوست څخه موږده کړل چې یو کسر دکومو اجزاوو درلودونکی دی؟<br>دبیلګې په توګه د $\frac{۳}{۴}$ په کسر کې ۳ د کسر صورت او ۴ د کسر مخرج اوهغه خط چې ۳ او ۴ سره جلا کوي کسري خط بلل کېږي.<br>د $\frac{۳}{۴}$ کسر په دایره کې وګورئ.<br>$\frac{۳}{۴}$<br>دکسر مخرج یعنې ۴ څرګندوي چې دایره په څلور وبرخو ویشل شوي ده .<br>دکسر صورت یعنې ۳ څرګندوي چې له ۴ برخو څخه ۳ برخې اخیستل شوي دي. |

**کورنۍ دنده :**

– زده کوونکي دې د کتاب د ۱۰۷ مخ شکلونه په خپلو کتابچوکې نقل او اړوندو کسرونو سره دې ولیکي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۱۰۷ ) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره د ښوونکی له خوا تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د فعالیت د پوښتنې ځوابونه:**

۱-



په شکل کې مربع په ۹ مساوي برخو وېشل شوې ده.

۴ برخې تورې شوې دي.

له ۹ برخو څخه ۴ برخې تورې شوې دي.

د مربع $\frac{۴}{۹}$ برخه توره شوې ده.

د مربع $\frac{۵}{۹}$ برخه سپینه پاتې شوې ده.

۲-

د لاندې شکلونو اړوند کسرونه ولیکئ؟




**دکورنۍ دندې حل :**



$\frac{۲}{۶}$ $\frac{۵}{۶}$ $\frac{۴}{۶}$ $\frac{۳}{۶}$

## د پوښتنی حل

لاندې کسرونه د شکلونو له مخې ولیکئ.



صورت $\frac{۶}{۱۶}$ کسری خط

مخرج



صورت $\frac{۳}{۸}$ کسری خط

مخرج



صورت $\frac{۳}{۵}$ کسری خط

مخرج



صورت $\frac{۷}{۸}$ کسری خط

مخرج

دری دېرشم لوست

## سرلیک: د هغو کسرونو پرتله کول چې مخرجونه يې سره مساوي وي

**مخې: ۱۰۸**

**وخت: ۲ درسي ساعته (۴۵ دقيقې)**

**موخې :**

- زده کوونکي دې د مساوي ډول مخرج لرونکو، کسرونو د پرتله کولو په مفهوم پوه شي.
- زده کوونکی هغه کسرونه چې مساوي مخرجونه ولري په اسانه توګه پرتله کړای شي.
- زده کوونکي د هم مخرج کسرونو د پرتله کولو څخه خوښی احساس کړي.

**نوي اصطلاحات:** (پرتله کول ، مساوي مخرجونه)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه ( ډله ییز او انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندوی توکي:** د کتاب د (۱۰۸) مخ د شکلونو د چارت چې مساوي مخرجونه ولري.

**دلوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br><br>له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• که چېرې دوه کسرونه ولرو چې صورتونه يې مختلف اومخرجونه يې مساوي وي کوم يو يې لوی دی؟<br>• که چيرې دوه کسرونه ولرو چې مخرجونه يي مساوي وي اوصورتونه يې توپیرو لري، کوم یو به یې کوچنی وي ؟ | – زده کوونکي له سلام اچولو، احوال پوښتنې څخه خوښيږي د ټولګي په تنظيم او د کورني کار په راوړلو ته چمتو کيږي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي. |
| ۳۰ دقيقې | – د درسی کتاب د (۱۰۸) مخ مثال په تخته باندی داسی توضیح کړئ چې زده کوونکي هم فعاله ونډه ولري.<br><br>– زده کوونکی په ډلو وویشی او د درسی کتاب د ۱۰۹ فعالیت هغوی ته وسپارئ چې سرته يې ورسوي. | – د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسئ.<br><br>– زده کوونکی په ډلو کې خپل نظريات يو له بل سره شريکوي او په فعاليت کې فعاله ونډه اخلي. |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې هم مخرجه کسرونه کوموکسرونو ته وایي؟<br>• څوک $\frac{۳}{۵}$ او $\frac{۶}{۵}$ کسرونه پرتله کولای شي؟<br>• آیا هغه زده کوونکي چې د هم مخرجه کسرونو په پرتله کولو کې له ستونز وسره مخامخ نه شول دخوښئ احساس ئې وکړو؟ | ۵ دقیقې |
| **د لوست لنډیز:**<br>زده کوونکو پدې لوست کې زده کړل چې هم مخرجه کسرونه څه ډول کسرونه دي. اوڅه ډول پرتله کیږي.<br>دبیلگې په ډول $\frac{۳}{۸}$ او $\frac{۴}{۸}$ کسرونه په پام کې نیسو<br>$\frac{۴}{۸}$ $\frac{۳}{۸}$<br>دنوموړو کسرونو په پرتله کولو کې لیدل کیږي چې ددواړو کسرونو مخرجونه مساوي دي نو هغه کسر چې صورت یې لوی دی له هغه کسر څخه چې صورت یې کوچنی دی لوی دی:<br>$\frac{۴}{۸} > \frac{۳}{۸}$<br>په همدې ډول هغه کسرچې صورت یې کوچنی دی له هغه کسر څخه چې صورت یې لوی دی کوچنی دی یعنې : $\frac{۳}{۸} < \frac{۴}{۸}$ | ۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکې ذ/ط د درسی کتاب (۱۰۹) مخ د کورنۍ دندې پوښتني په خپلو کتابچو کې نقل او حل دې کړي.

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۱۱۰ ) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنې د حل لپاره د ښوونکی له خوا تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د زده کوونکو د فعالیت ځوابونه:**

د هر ډلې زده کوونکي دې د لاندې شکلونو اړوند کسرونه ولیکي او بیا دې پرتله کړي؟

$\frac{۲}{۴}$    $\frac{۱}{۴}$    $\frac{۲}{۴}$    $\frac{۴}{۵}$

**د کورنۍ دندې حل:**

د دوو کسرونو د منځ په تش ځای کې د (< یا >) مناسبه نښه ولیکئ.

$\frac{۱}{۵} < \frac{۳}{۵}$      $\frac{۱}{۴} < \frac{۳}{۴}$

$\frac{۷}{۹} > \frac{۴}{۹}$      $\frac{۵}{۶} > \frac{۲}{۶}$

## د پوښتنو حل

پرتله يې کړئ؟

$\frac{۱۵}{۱۸} > \frac{۱۳}{۱۸}$

$\frac{۷}{۹} > \frac{۵}{۹}$

$\frac{۳۴}{۷۵} < \frac{۴۰}{۷۵}$

$\frac{۴}{۱۱} < \frac{۹}{۱۱}$

$\frac{۶۲}{۸۰} < \frac{۷۵}{۸۰}$

$\frac{۱۰}{۲۰} > \frac{۸}{۲۰}$

$\frac{۷۶}{۸۵} > \frac{۶۷}{۸۵}$

$\frac{۵۴}{۷۳} > \frac{۵۳}{۷۳}$

$\frac{۸۷}{۹۳} > \frac{۷۸}{۹۳}$

$\frac{۶۱}{۷۰} > \frac{۶۰}{۷۰}$

$\frac{۹۲}{۹۷} < \frac{۹۳}{۹۷}$

$\frac{۴۵}{۵۵} < \frac{۵۴}{۵۵}$

څلور دیرشم لوست

## سرلیک: دعامو کسرونو جمع کول چې مخرجونه یې سره مساوي وي

**مخ: ۱۱۱**

**وخت: ۲ درسی ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې :**

- پوهیزي : زده کوونکي له شکلونو څخه په ګټه اخیستو دهغو کسرونو دجمع مفهوم درک کړي چې مساوی مخرجونه ولري.
- مهارتی : زده کوونکی دې داسې کسرونه په آسانی سره جمع کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکی دې د هم مخرجو کسرونو د جمع کولو څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** هم مخرج کسر ونه.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز ، انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندوی توکي:** ( د لوست د کتاب تخته تباشیر

.

**دلوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکوفعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br><br>– له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ: | – زده کوونکی په سلام اچولو، احوال پوښتنه او دښوونکي په لارښوونه خوښیږي دغه حالت دهغو په وروستیو فعالیتونو کې مرسته کوي. |
| ۳۰ دقیقې | • آیا ویلای چې د مستطیلی شکلونو په واسطه په نښه شوی دي کوم کسر ښئ؟<br>• چې د ټکو په واسطه کوم کسرونه په نښه شوي دي ؟<br>• په مجموع کې دنومړو شکلونو کوم کسرونه په نښه شوي دي؟<br><br>– که زده کوونکو سم ځواب ورنه کړای شو. ښوونکي دی زده کوونکو ته د دوي په ونډه اخیستو ځوابونه ورکړي.<br><br>– د درسی کتاب د (۱۱۱) مخ مثال یو تخته باندی داسی حل کړی چې زده کوونکي هم فعاله ونډه ولری.<br><br>– زده کوونکي په دلو وویشی او د درسی کتاب د (۱۱۲) مخ فعالیت هغوی ته ورکړی چې تر سره یې کړئ. | – زده کوونکی ځواب ورکوي که ستونزه ولري پوښتنه کوي.<br><br>– زده کوونکی د مثال د حلولو په وخت تخته ته توجه کوی.<br>– زده کوونکی په دلیز کارکې فعاله ونډه واخلی. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې په $\frac{۲}{۵}$ او $\frac{۱}{۵}$ کسرونو کې کوم یو لوی دی اوولې؟<br>• څوک د $\frac{۱}{۳}$ او $\frac{۲}{۳}$ کسرونه سره جمع کولای شي؟<br>• آیا زده کوونکي د هغو کسرونو له جمع کولو څخه چې مساوي مخرجونه ولري د خوښۍ احساس کوي؟<br>• څوک د $\frac{۲}{۵}$ او $\frac{۱}{۵}$ کسرونو دجمع کولو عملیه په پورته شکلونوکې شرحه کولای شي؟ |
| ۵ دقیقې | **دلوست لنډیز:**<br>له نني لوست څخه مو زده کړل چې دهغوکسرونو دجمع کولو په عملیه کې چې مساوي مخرجونه لري دکسرونو صورتونه جمع کوو اوپه یوه مخرج یې لیکو.<br>مثلاً: د $\frac{۱}{۶}$ او $\frac{۲}{۶}$ کسرونو په شکلونوکې له یوبل سره جمع کوو تاسو کولای شي چې د دري اویا تردې زیات کسرونو په جمع کولوکې چې یو ډول مخرجونه ولري د کسرونو د جمع عملیه سرته ورسوئ.<br>$\frac{۱}{۶} + \frac{۲}{۶} = \frac{۳}{۶}$ |

**کورنۍ دنده:**

– د (۱۱۳) مخ دوه پوښتني دي په خپلو کتابچوکې ولیکی او حل دې کړئ

**دویم درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د ( ۱۱۳ ) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې ستونزی سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره د ښوونکی له خوا تختې ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**دفعالیت حل**:



$$\frac{۳}{۸} + \frac{۲}{۸} = \frac{۵}{۸}$$

**دکورنی دنده حل** :

$$\frac{۲}{۷} + \frac{۳}{۷} = \frac{۵}{۷}$$ ، $$\frac{۱}{۵} + \frac{۸}{۵} = \frac{۹}{۵}$$

**د پوښتنو حل**

$$\frac{۷}{۱۵} + \frac{۱}{۱۵} = \frac{۸}{۱۵}$$

$$\frac{۴}{۱۱} + \frac{۵}{۱۱} = \frac{۹}{۱۱}$$

$$\frac{۱۳}{۱۶} + \frac{۲}{۱۶} = \frac{۱۵}{۱۶}$$

$$\frac{۲۵}{۱۰۰} + \frac{۵}{۱۰۰} = \frac{۳۰}{۱۰۰}$$

$$\frac{۳}{۱۰} + \frac{۶}{۱۰} = \frac{۹}{۱۰}$$

$$\frac{۲}{۸} + \frac{۵}{۸} = \frac{۷}{۸}$$

$$\frac{۲}{۱۲} + \frac{۵}{۱۲} = \frac{۷}{۱۲}$$

$$\frac{۱۱}{۳۰} + \frac{۱۱}{۳۰} = \frac{۲۲}{۳۰}$$

**پنځه دیرشم لوست**

## سرلیک: د عام کسر تفریق چې مساوي مخرجونه ولري

**مخ: ۱۱۴**

**وخت: ۲ درسی ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**موخې :**

- پوهنیزي : زده کوونکي دشکلونوله مخې دهم مخرجو کسرونو دتفریق په مفهوم پوه شي.
- مهارتي : زده کوونکي دشکلونو له مخې دغه ډول کسرونه په اسانه توګه تفریق کړای شي.
- ذهنیتي : زده کوونکې دې د هم مخرج کسرونو د تفریق څخه خوشحاله شي او د ریاضی سره دې مینه څرګنده کړي.

**نوي اصطلاحات:** (کسرونه، هم مخرج کول، مساوي مخرجونه )

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ګروپي کار، انفرادی کار پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې درسي توکي:** تباشیر، درسی کتاب ، تخته پاک.

**د لوست بهیر:**

| وخت | دښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – له سلام اچولو، احوال پوښتنې د ټولګی تنظیم، حاضري اخیستلو او دکورنۍ کار له لیدلو وروسته دتیر او نوي لوست ترمنځ اړیکه ورکړئ.<br>له زده کوونکو څخه و پوښتئ:<br>• آیا ویلاي شئ چې د لاندنی شکل په څو مساوی برخو ویشل شوی دي؟<br>• څوک ویلای شی چې څو برخی کې توری شوي دي؟ | – زده کوونکي له سلام اچولو، احوال پوښتنې څخه خوښیږي د کورني کار په راوړلو او د ځوابونو په ورکولو کې چمتو کیږي.<br><br>– زده کوونکی ځواب ورکړئ. |
| ۳۰ دقیقي | • آیا کولای شئ چې د تورو شوو برخو اړوند کسریې ولیکی؟<br>– د درسي کتاب د (۱۱۴) مخ مثال د تختې پرمخ په دې ډول حل کړئ چې زده کوونکي هم په کې فعاله ونډه واخلي یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې لاس ته راوړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۱۱۵) مخ فعالیت دوي ته ورکړئ ترڅو یو دبل سره په مشوره یې حل کړي.<br>د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري.<br>– د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختې پرمخ سرته رسولی فعالیت نورو ته توضیح کړي. | – د ښوونکي توضیحاتوته په غور سره غوږ نیسی. د مثال د حلولو په وخت کې د ښوونکي توضیحاتوته غوږ نیسي او ورمعلوماتونه تر لاسه کوي.<br>– په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو دحلولوپه وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>– که د ډله ایزکار په وخت کې له ستونزی سره مخامخ کیږی له ښوونکی مرسته غواړي.<br>– زده کوونکي د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتنی حل ته هم پاملرنه کوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقه | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي که دوه هم مخرجه کسرونه له یو بل څخه تفریق کړو څه باید وکړو؟<br>• څوک د $\frac{۲}{۸}-\frac{۴}{۸}$ حاصل تفریق لاسته راوړلي شي؟<br>• که چیرې د هم مخرجه کسرونو تفریق ونه شو کړای په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخامخ شو؟ |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې هم مخرجه کسرونه څه ډول جمع کولای شو؟<br>د بېلګې په توګه: په شکل کې یوه مربع لرو چې په ۸ برخو کې ویشل شوي ده پنځه برخې یې تورې شوي دي اړوند کسر یې له $\frac{۳}{۸}$ څخه عبارت دی اوس که $\frac{۳}{۸}$ توره شوي برخه یې واخیستل شي $\frac{۲}{۸}$ برخه یې پاتې کیږي لکه په لاندې ډول:<br>$\frac{۵}{۸}-\frac{۳}{۸}=\frac{۲}{۸}$<br>$\rightarrow \frac{۳}{۸}$<br>$\frac{۵}{۸}-\frac{۳}{۸}=\frac{۲}{۸}$ |

**کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې د کتاب د (۱۱۵) مخ د کورنۍ دندې دوه پوښتني په خپلو کتابچو کې ولیکي او حل کړي.

**دویمه درسی ساعت (۴۵ دقیقه)**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵دقیقی | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته د درسي کتاب د (۱۱۵) مخ هره یوه پوښتنه د تختې پر مخ په زده کوونکو حل کړئ او که د پوښتنو په حلولو کې له ستونزې سره مخامخ شول لارښوونه ورته وکړئ. | – هغه زده کوونکي چه د پوښتنی د حل لپاره د ښوونکی له خوا تختی ته را بلل کیږي ورکړل شوي پوښتنه په غور سره حلوي. |

**د کورنۍ دندې حل :**

د لاندې مساوي مخرج لرونکو عامو کسرونو د تفریق حاصل پیدا کړئ؟

$\frac{۶}{۷} - \frac{۳}{۷} = \frac{۳}{۷}$

$\frac{۵}{۹} - \frac{۲}{۹} = \frac{۳}{۹}$

**د پوښتنو حل**

$\frac{۶}{۲۰} - \frac{۲}{۲۰} = \frac{۴}{۲۰}$

$\frac{۷}{۱۰} - \frac{۴}{۱۰} = \frac{۳}{۱۰}$

$\frac{۱۷}{۳۵} - \frac{۹}{۳۵} = \frac{۸}{۳۵}$

$\frac{۷}{۱۲} - \frac{۵}{۱۲} = \frac{۲}{۱۲}$

$\frac{۲۰}{۱۰۰} - \frac{۲۰}{۱۰۰} = \frac{۰}{۱۰۰}$

$\frac{۸}{۱۸} - \frac{۴}{۱۸} = \frac{۴}{۱۸}$

# د څلورم څپرکی د پای د پوښتنو حل

| ځوابونه | پوښتنې |
|---|---|
| دایره په اتو مساوي برخو ویشل شوي ده پنځه برخې یې تورې شوي دي اړوند کسر ئې $\frac{۵}{۸}$ دی | ۱) دغه دایره په څو مساوي برخو ویشل شوي ده او څو برخې یې تورې شوي دي اړوند کسر یې ولیکئ. |
| (۱)شکل $\frac{۳}{۶}$ <br> (۲)شکل $\frac{۱}{۶}$ | ۲) شکل (۱) شکل (۲) <br> د ۱ او ۲ شکل کسرونه ولیکئ |
| $\frac{۱}{۵}$ $\boxed{>}$ $\frac{۳}{۵}$ | ۳) ........ ☐ ........ <br> د پورتنیو شکلونو اړوند کسرونه ولیکئ او نومورې کسرونه سره پرتله کړئ. |
| $\frac{۸}{۹}$ $\boxed{<}$ $\frac{۶}{۹}$ <br> $\frac{۳}{۷}$ $\boxed{>}$ $\frac{۴}{۷}$ | ۴) لاندې کسرونه سره مقایسه (پرتله) کړئ: <br> $\frac{۸}{۹}$ ☐ $\frac{۶}{۹}$ <br> $\frac{۳}{۷}$ ☐ $\frac{۴}{۷}$ |
| $\frac{۶}{۸}+\frac{۵}{۸}=\frac{۶+۵}{۸}=\frac{۱۱}{۸}$ | ۵) لاندې هم مخرجه کسرونه سره جمع کړئ. <br> $\frac{۶}{۸}+\frac{۵}{۸}=?$ |
| $\frac{۹}{۱۵}-\frac{۵}{۱۵}=\frac{۹-۵}{۱۵}=\frac{۴}{۱۵}$ | ٦) لاندې هم مخرجه کسرونه سره تفریق کړئ. <br> $\frac{۹}{۱۵}-\frac{۵}{۱۵}=?$ |

# پنځم څپرکی

## د اندازه کولو واحدونه

### د څپرکي جوړښت




**د لوست د ساعتونو شمیره: د لوست ۲۶ ساعته**

**د ښوونکی له پاره لازمي معلومات:**

- ۱ کیلومتر له ۱۰ هکتو مترو سره مساوي دی.
- ۱ کیلومتر له ۱۰۰ دیکامترو سره مساوي دی.
- ۱ کیلومتر له ۱۰۰۰ مترو سره مساوي دی.
- ۱ هکتومتر له ۱۰ دیکامترو سره مساوي دی.

شپږ دېرشم لوست

## سرليک: د اوږدوالي (طول) د اندازه کولو واحد

**مخ: ۱۱٦**

**وخت: ۱ درسی ساعت (۴۵ دقيقه يې)**

**موخې :**

- پوهنيزي : زده کوونکي د اوږدوالی واحد ( متر ) وپيژنی.
- مهارتی : د زده کوونکی د اوږدوالی د واحد په استفاده سره د شيانو اوږدوالی معلوم کړای شي.
- ذهنيتی : زده کوونکې د شيانو د اوږدوالی له معلومولو څخه خوند اخلی.

**نوي اصطلاحات:** واحـــــد، اندازه کول، اوږدوالي، متر .

**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ډله ييز کار، انفرادي، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې مرستندوی توکي:** متر، ۱۵ او ۱۰ سانتي متري خط کش چې د ښوونکی له خوا چمتو شوی وي او د کتاب د (۱۱٦) مخ چارت.

**د لوست بهـــير:**

| وخت | د ښوونکي فعـــاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | - د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته:<br>- لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ.<br>• آيا ويلای شئ چې د شيانو اوږدوالی د څه شي په واسطه اندازه کيږي ؟<br>• ستاسو په فکر د اوږدالی د اندازه کولو واحد څه شی دي؟<br><br>- له ځواب ورکولو وروسته ورته متر وښاياست او ورته ووايي چې دا متـــــر دی، اود هغه پواسطه د شيانو اوږدوالی او سور پرې اندازه کيږي. | - زده کوونکي د احوال پوښتنې څخه خوښيږي او د ټولګي تنظيم، دکورني کار له ښودلو څخه خوند اخلي. دغه حالت ددې سبب کيږي چې په وروستيو فعاليتونو کې وهچول شي.<br><br>- زده کوونکی ځواب ورکوي. |
| ۳۰ دقيقي | - د درسي کتاب د (۱۱٦ مخ د اوږدوالی د واحد (متر) اجزاء او اضعاف په تخته باندی توضيح او تشريع کړئ<br><br>- زده کوونکي په ډلو وويشئ او د درسي کتاب د (۱۱۷) مخ فعاليت دوي ته ورکړئ ترڅو يو له بل سره په مشوره يې حل کړي. د ډله ايزکار په وخت کې له ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په کې برخه ولري. | - زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نيسي.<br><br>- په ډليز فعاليت کې برخه اخلی او خپل نظرونه د خپل ډلی له غړو سره شريکوي.<br><br>- زده کوونکی د دلو نماينده ګانو په |

| | | |
|---|---|---|
| | – د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختی پر مخ سرته رسولی فعالیت نورو ته توضیح کړي.<br>– د درسی کتاب د (۱۱۸) مخ (۱) او (۲) مثال په تخته باندی حل کړئ چې زده کوونکی په کې فعاله ونډه ولری. | توضیحات کې غوړنیسی. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې د خپل ډاډ له پاره لاندې پوښتنې وکړي:<br>• څوک د متر اجزاء معرفي کوي؟<br>• څوک ویلای شي چې د متر اضعاف څه شی دي؟<br>• څوک کولی شي چې د ۵دیسي متره په متر او ۷ متره په دیکامتر تبدیل کړي؟<br>• څوک د متر اړیکه د هغه له اضعافو سره په تخته لیکلای شي؟<br>• آیا زده کوونکي پورتنیو پوښتنو ته په مینه غوړ نیسي؟ | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو کولای شئ د شیانو د اوږدوالي د اندازه کولو لپاره له متر څخه استفاده وکړئ.<br>– یو متر ۱۰۰ سانتي متره کیږي.<br>– یو متر ۱۰ دیسي متره کیږي.<br>– یو سانتی متر ۱۰ ملي متره کیږي.<br>– دغه راز یو دیکامتر ۱۰ متره کیږي.<br>– یو هکتو متر ۱۰۰ متره کیږي.<br>– یو کیلومتر ۱۰۰۰ متره کیږي. | |

**کورنۍ دنده:**

– د کتاب د (۱۱۷) مخ کورنۍ دنده زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړئ چې په خپلوکتابچو کې یې حل او له ځانه سره یې راوړي.

## د فعالیت حل

هرې ډلې  زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي.

- ۱ دیکامتر مساوي دی له ۱۰ مترو سره
- ۱ هکتومتر مساوي دی له ۱۰۰ مترو سره
- ۱ کیلو متر مساوي دی له ۱۰۰۰ مترو سره

## د پوښتنو حل:

**۵** متره مساوي دي له ......**۵۰**..... دیسي مترو سره.

**۵** متره مساوي دي له .......**۵۰۰**.... سانتي مترو سره.

**۳** متره مساوي دي له ........**۳۰۰۰**... ملي مترو سره.

## د کورنۍ دندې حل :

۲۰ دیسی متره مساوی دي له ۲ مترو سره

۳۰۰ سانتی متره مساوی دي له ۳ مترو سره

۲۰۰۰ ملی متره مساوی دي له ۲ مترو سره

اته دیرشم لوست

## سرلیک: د اوږدوالی د واحد اجزاوو او اضعافو یو پربل باندې بدلول

**مخ: ۱۱۸**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:**

- پوهنیزې : زده کوونکي د اوږدوالی د واحد اجزا او اضعاف او د هغوی بدلول یو پر بل په مفهوم پوشي.
- مهارتي: زده کوونکې د ې د اجزا او اوضعاف څخه په ګټه اخستنو سره د شیانو کتله معلومه کړای شي.
- ذهنيتي : زده کوونکی د شیانو د کتلی د اندازی له معلومولو څخه خوښی لاسته راوړي.

**اصـــطلاحات:** واحد، اندازه کول، کتله، اجزاء او اضعاف.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار، سوال او ځواب).

**د زده کړې توکي:** د درسی کتاب ، تخته ، تباشیر .

**د لوست بهـــــېر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br>• آیا کولای شئ د متر اجزاو اضعاف یو پر بل واړوی؟<br>• ستاسو په فکر دا کار څه ګټه لري ؟ | – زده کوونکي په سلام اچولو، احوال پوښتنه خوښیږي، د ټولګي د تنظیم او حاضری په اخیستلو کې ونډه اخلي، او ښوونکی ته خپله کورنۍ دنده ښیي.<br>– د ښوونکی پوښتنې ته ځواب ورکوی. |
| ۳۰ دقیقه | د ( ۱۱۸ ) مخ لمړي او دویم مثال پر تخته باندې داسې حل کړئ ترڅو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري او د مثالو د حل په وخت کې زده کوونکوته هم برخه ورکړئ یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې تر لاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د ( ۱۱۹ ) مخ فعالیت دوي ته وسپارئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړي.<br>د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختې پرمخ خپل رسولی فعالیت نوروته توضیح کړي. | – په عور سره د ښوونکی تشریحات اورئ او د ښوونکی پوښتنوته ځوابونه ورکوي<br>– زده کوونکي په ډله ایزکار کې باید فعاله ونډه واخلي. |

| | |
|---|---|
| **ارزونه:**<br>• ځوک ویلای شي چې د متر اجزا او اضعاف څه شي دئ؟<br>• ځوک ۴ متره په ملي متر بدلولای شي؟<br>• ځوک ویلای شي که د اندازه کولو واحد ونه پېژنو په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخ شو؟ | ۵ دقیقې |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې:<br>د متر اجزاء او اضعاف څه شی دي؟<br>مثلاً: د متر اجزاء:<br>یو متر مساوی کیږي له: ۱۰ دیسي متر، ۱۰۰ سانتي متر، ۱۰۰۰ ملي متر<br><br>د متر اضعاف: ۱۰ متر = یو دیکا متر، ۱۰۰ متر = یو هکتو متر، ۱۰۰۰ متر = یو کیلو متر | ۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده:**

- د کتاب د ۱۱۹ مخ کورنۍ دنده په خپل کتابچو کې حل کړې

## د فعالیت حل

۳ متره مساوی دي له .....۳۰۰۰...... ملی مترو سره
۷ متره مساوی دی له .....۷۰۰........ سانتی مترو سره
۹ متر مساوی دی له .....۹۰...........دیسی مترو سره
٦ کیلو متره مساوی دی له ....٦۰۰۰ .... مترو سره
۵ هکتو متره مساوی دی له ....۵۰۰ ..... مترو سره

## د پوښتنو حل

– ۹ کیلو متره څو متره کیږي      ۹۰۰۰ متره

– ۴۵ هکتومتره څوه متره کیږي حساب یي کړئ      ۴۵۰۰ متر

## د کورنۍ دندې حل :

۲ متره په سانتی متر واړوئ.      سانتی متر ۲۰۰ = ۱۰۰ × ۲

۸ متره په ملي متر واړوئ .      سانتی متر ۸۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۸

نهه دیرشم لوست

## سرلیک: د کتلې د اندازه کولو واحد

**مخ: ۱۲۰**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:**

- پوهنیزي : زده کوونکي د کتلې د واحد په مفهوم پوشی.
- مهارتي: زده کوونکې د کتلې د واحد په استفاده سره د شیانو درنوالی معلوم کړای شي.
- ذهنیتي : زده کوونکی د شیانو د کتلی د اندازه کولو څخه خوښی لاسته راوړي.

**اصـــطلاحات:** واحد، اندازه کول، کتله، اجزاء او اضعاف.

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ډله ییز او انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې توکي:** د درسی کتاب ، تخته ، تباشیر .

**د لوست بهــــــیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – دلومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br><br>● کتله دڅه په واسطه اندازه کیږی.<br>● د کتلې د اندازه کولو واحد څه شی دی؟ | – زده کوونکي په سلام اچولو، احوال پوښتنه خوښیږي، د ټولگي د تنظیم او حاضری په اخیستلو کې ونډه اخلي، او ښوونکی ته خپله کورنۍ دنده ښيي.<br>– د ښوونکی پوښتنی ته ځواب ورکوی. |
| ۳۰ دقیقي | د ( ۱۲۱ ) مخ مثال په زده کوونکو په دې ډول حل کړئ ترڅو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري او د مثالو د حل په وخت کې زده کوونکوته هم برخه ورکړئ یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې تر لاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د ( ۱۲۱ ) مخ فعالیت دوي ته وسپارئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړي.<br>د ډله ایزکار په پای کې د ډلو نماینده گان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختی پرمخ خپل رسولی فعالیت د تختی پرمخ نوروته توضیح کړي. | – د مثال په حلولو کې برخه اخلي او د ښوونکي پوښتنو ځواب ورکوي.<br>– زده کوونکي په ډله ایزکار کې باید فعاله ونډه واخلي.<br>– زده کوونکي خپلي ستونزي له ښوونکی پوښتني له هرې ډلې څخه یو، یوکس دخپلی ډلې سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کوي. |

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د ګرام اجزا او اضعاف څه شي دئ؟<br>• څوک ۴ ګرامه په ملي ګرام بدلولای شي؟<br>• څوک ویلای شي که د اندازه کولو واحد ونه پېژنو په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخ شو؟ |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې:<br>د ګرام اجزاء او اضعاف څه شی دي؟<br>مثلاً: دګرام اجزاء:<br>یو ګرام مساوی کیږي له ← ۱۰ دیسي ګرامه، ۱۰۰ سانتي ګرامه، ۱۰۰۰ ملي ګرامه<br><br>دګرام اضعاف ← ۱۰ ګرام = یو دیکا ګرام، ۱۰۰ ګرام = یو هکتو ګرام، ۱۰۰۰ ګرام = یو کیلو ګرام |

**کورنۍ دنده:**

- د کتاب د ۱۲۱ مخ د کورنۍ دندې پوښتنې دې زده کوونکي په کتابچو کې ولیکي او حل دې کړئ.

**د فعالیت حل**

- یو دیکاګرام مساوي دی له .......۱۰.............. ګرامو سره
- یو هکتو ګرام مساوي دی له .......۱۰۰............ ګرامو سره

**په خپلو کتابچو کې یې حساب کړئ.**

**حل**:

- ۸ دیکا گرامه له څو ګرامو سره برابر دي؟

ګرام ۸۰ = ۱۰ × ۸

- **۵** هکتو گرامه له څو ګرامو سره برابر دي؟

ګرام ۵۰۰ = ۱۰۰ × ۵

-۳ کیلوگرام گرامه له څو ګرامو سره برابر دي؟

ګرام ۳۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۳

**د کورنۍ دندې حل** :

تش ځایونه ډک کړئ.

**۵۰** دیسي ګرامه مساوي دی له ......**۵**........... ګرامه سره

۶۰۰ سانتي ګرامه مساوي دی له .......**۶**......... ګرامه سره

**۹۰۰۰** ملي ګرامه مساوي دی له .........**۹**..........ګرامه سره

خلوېښتم لوست

## سرليک: د کتلې د اندازه کولو واحد او يو پربل د اجزاوو او اضعافو بدلول

**مخ: ۱۲۲**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقيقه يې)**

**موخه:**

- پوهنيزي : زده کوونکي د کتلي د واحد د اجزاوو او اضعافوو يو پر بل باندې بدلول په مفهوم پوه شي.
- مهارتي: زده کوونکې وتوانيږی چې د کتلې د واحد اجزا او اوضعاف يو پر بل باندې تبديل کړئ.
- ذهنيتي : زده کوونکی د کتلې د واحد اجزاوو او اضعافو يو پر بل باندې له تبديلولو څخه خوند واخلی.

**اصـــطلاحات:** واحد، اندازه کول، کتله، اجزاء او اضعاف.

**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ډله ييز او انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه ).

**د زده کړې توکي:** درسی کتاب ، تخته ، تباشير

**د لوست بهـــــير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته له زده کوونکو پوښتنه وکړئ.<br>• آيا کولای شو چې د کتلې د واحد اجزا او اضعاف يو پر بل واړو ؟<br>• ستاسو په فکر د دې بدلولو ګټه څه ده ؟ | – زده کوونکي په سلام اچولو، احوال پوښتنه خوښيږي.<br>– د ښوونکی پوښتنی ته ځواب ورکوی. |
| ۳۰ دقيقې | د ( ۱۲۲ ) مخ (۱) او (۲) مثال په زده کوونکو په دې ډول حل کړئ ترڅو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري او د مثالو د حل په وخت کې زده کوونکوته هم برخه ورکړئ يعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې تر لاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وويشئ او د ( ۱۲۳ ) مخ فعاليت دوي ته وسپارئ ترڅو يو د بل په مشوره يې حل کړي.<br>د ډله ايزکار په پای کې د ډلو نماينده ګان راوغواړئ ترڅو په خپل وارسره د تختی پرمخ خپل رسولی فعاليت د تختی پرمخ نوروته توضيح کړي. | – په غور سره د ښوونکی تشريحات اورئ او د مثالونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي په ډله ايزکار کې بايد فعاله ونډه واخلي.<br>– د ډلو د نماينده ګانو توضيحاتوته غوږنيسی. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>• څوک ویلای شي چې د ګرام اجزا او اضعاف څه شي دي؟<br>• څوک ۴ ګرامه په ملي ګرام بدلولای شي؟<br>• څوک ویلای شي که د اندازه کولو واحد ونه پېژنو په ورځني ژوند کې به له کومو ستونزو سره مخ شو؟ |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې:<br>د ګرام اجزاء او اضعاف څه شی دي؟<br><br>مثلاً: دګرام اجزاء:<br>یو ګرام مساوی کیږي له ← ۱۰ دیسي ګرامه، ۱۰۰ سانتي ګرامه، ۱۰۰۰ ملي ګرامه<br><br>دګرام اضعاف ← ۱۰ ګرام = یو دیکا ګرام، ۱۰۰ ګرام = یو هکتو ګرام، ۱۰۰۰ ګرام = یو کیلو ګرام |

**کورنۍ دنده:**

- د کتاب د ۱۲۳ مخ د کورنۍ دندې پوښتنې دې زده کوونکي په کتابچو کې ولیکی او حل دې کړئ.

**د فعالیت حل:**

۴ ګرامه مساوي دي له ............ ٤٠٠٠ ............ ملي ګرامو سره

۹ ګرامه مساوي دي له ............ ٩٠٠ .......... سانتي ګرامو سره

۵ ګرامه مساوي دي له ............ ٥٠ ......... ديسي ګرامو سره

۲ کیلو ګرامه مساوي دي له ...... ٢٠٠٠ ........... ګرامو سر

۷ هکتوګرامه مساوي دي له ....... ٧٠٠ .......... ګرامو سره

٦ دیکا ګرامه مساوي دي له ........ ٦٠ .......... ګرامو سره

**په خپلو کتابچو کې يې حساب کړئ**

**حل:**

- **۵۵** ګرامه له څو ديسي ګرامو سره مساوي کيږي، حساب يې کړئ؟

  ٥٥ × ١٠ = ٥٥٠ ديسی ګرام

- ۱۰۰کیلو ګرامه له څو ګرامو سره مساوي کيږي ؟

  ١٠٠ × ١٠٠٠ = ١٠٠٠٠٠ ګرام

- ۴۰ دیکا ګرامه له څو ګرامو سره مساوي کيږي ؟

  ٤٠ × ١٠ = ٤٠٠ ګرام

- ۲۰ هکتو ګرام له څو ګرامو سره مساوي کيږي ؟

  ٢٠ × ١٠٠ = ٢٠٠٠ ګرام

**د کورنۍ دندې حل:**

- **۱۵** ګرامه له څو ملي ګرامو سره مساوي کيږي، حساب يې کړئ.

  ١٥ × ١٠٠٠ = ١٥٠٠٠ ملی ګرام

**۱۲** ګرامه له څو سانتي ګرامو سره مساوي کيږي، حساب يې کړئ.

١٢ × ١٠٠ = ١٢٠٠ سانتی ګرام

**یو څلویښتم لوست**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یې)**

**موخې:**

## سرلیک: د ظرفیت (حجم) د اندازه کولو واحد

**مخ: ۱۲۴**

- دانشي : زده کوونکي د ظرفیت د اندازه کولو واحد (لیتر) وپېژني.
- مهارتي : زده کوونکي وکولای شي چې د ظرفیت د واحد( لیتر) په واسطه د مایعاتو اندازه معلوم کړي.
- ذهنیتي : زده کوونکي د ظرفیت د واحد ( لیتر ) په واسطه د مایعاتو له اندازه کولو څخه خوند واخلي.

**نوي اصطلاحات:** (واحد، ظرفیت، اجزاء او اضعاف)

**د زده کړې میتود:** فعاله زده کړه (ګروپي کار، انفرادي کار، سوال او ځواب)

**د زده کړې مرستندوی توکي:** د اوبو د څښلو معمولي ګیلاس- د اوبو جک، دظرفیت د اندازه کولو د واحدونو چارت.

**د لوست بهـــــیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | - د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته : وروسته له زده کوونکو څخه وپښتي<br>• څه فکر کوئ چې مایعات (اوبلن) اوبه ، تیل ، غوړي، شبدې، او نور د څه شي په واسطه اندازه کېږي؟<br>• آیا ویلای شئ چې د ظرفیت د اندازه کولو واحد څه شی دی؟<br>- د درسی کتاب د ۱۲۴ مخ موضوعات په تخته باندی زده کوونکو ته توضیح کړئ.<br>- د درسي کتاب د (۱۲۵) مخ مثال پرتخته داسې حل کړئ ترڅو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. او د مثالوتوپه حلولو کې زده کوونکوته هم برخه ورکړئ یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړی او د قناعت وړ ځوابوته ترلاسه کړئ.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د (۱۲۵) مخ فعالیت دوي ته ورکړئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړي.<br>د ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې برخه ولري.<br>- د ډله ایزکار په پای کې د ډلونماینده ګان راوغواړئ ترڅوپه خپل وارسره د تختې پرمخ سرته رسولی فعالیت نوروته توضیح کړي. | - زده کوونکي له سلام اچولو، احوال پوښتنې څخه خوښـــېږي<br>- زده کوونکي د ښوونکي هر سؤال ته ځواب وائي.<br>- د ښوونکی توضیحات توته غوږ نیسي او لازم معلوماتوته تر لاسه کوي.<br>- زده کوونکې د مثال په حلولو کې ونډه اخلي او د دښوونکی پوښتنوته ځوابونه ورکوي<br>- په ډله ایزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شریکوي.<br>- زده کوونکی د نورو ډلو د نماینده ګانو د پوښتني حلولوته هم پاملرنه کوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقي | **ارزونه:**<br>• ځوک ویلای شي چې مایعات په څه شي اندازه کیږي؟<br>• ځوک ۵ لیتره په دیسي لیتر بدلولای شي؟<br>• که چیري د لیتر واحدات ونه پیژنو نو له کومو ستونزو سره مخامخ کیږو؟ |
| ۵ دقیقي | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې د ظرفیت د اندازه کولو واحد لیتر دی چې اجزاء او اضعاف لري.<br>د لیتر اجزا:<br>۱ لیتر مساوی دی له: ۱۰ دیسي لیتر، ۱۰۰ سانتي لیتر، ۱۰۰۰ ملي لیتر<br>دلیتر اضعاف: ۱۰ لیتر = ۱ دیکا لیتر، ۱۰۰ لیتر = ۱ هکتو لیتر، ۱۰۰۰ لیتر = ۱ کیلو لیتر |

**کورني دنده :**

– زده کوونکي دې د ۱۲۵ مخ کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**د فعالیت حل**:

- ۱ یو دیکالیتر مساوي دی له .........۱۰..... لیترو سره.
- ۱ یو هکتو لیتر مساوي دی له ......۱۰۰....... لیترو سره.
- ۱ کیلو لیتر مساوي دی له ..........۱۰۰۰..... لیترو سره.

**په خپلو کتابچو کې حساب کړئ**

**حل**:

۹ لیتره څو دیسي لیتره کیږي.

دیسی لیتر ۹۰ = ۱۰ × ۹

۷ لیتره څو سانتي لیتره کیږي.

سانتی لیتر ۷۰۰ = ۱۰۰ × ۷

۳ لیتره څو ملي لیتره کیږي.

ملی لیتر ۳۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۳

**د کورنۍ دندې حل**

۵۰ دیسي لیتره مساوي دي له........ ۵....... لیترو سره.

۳۰۰ سانتي لیتره مساوي دي له .....۳....... لیترو سره.

۱۰۰۰ ملي لیتره مساوي دي له ....... ۱........ لیترو سره.

دوه څلويښتم لوست

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقيقه يې)**

**موخې:**

## سرليک: د ظرفيت (حجم) د اندازه کولو واحد اجزاوو او اضعافو يو پر بل باندې بدلول

**مخ: ۱۲٦**

پوهنيزي : زده کوونکي د ظرفيت د اندازه کولو واحد (ليتر) د اجزا او اضعافو يو پر بل باندې د بدلون په مفهوم پوه شي

مهارتی : زده کوونکي وکولای شی چې د ظرفيت د واحد( ليتر) په واسطه اجزا او اضعاف يو پر بل باندې تبديل کړی.

ذهنيتی : زده کوونکي د ظرفيت د واحد ( ليتر ) په واسطه د اجزا او اضعاف يو پر بل باندې له تبديلولو څخه خوند واخلی.

**نوي اصطلاحات:** (واحد، ظرفيت، اجزاء او اضعاف)

**د زده کړې ميتود:** فعاله زده کړه (ګروپي کار، انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې توکي:** درسی کتاب ، تخته ، تباشير .

**د لوست بهـــــير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو څخه وروسته : له زده کوونکې څخه وپښتی.<br>• څه فکر کوئ موږ کولای شو چې د ظرفيت د واحد اجزا او اضعاف يو پر بل باندې تبديل کړو.<br>• آيا ستاسو په فکر د ظرفيت د واحد د اجزاوو او اضعافو بدلول څه ګټه لري؟<br>– د درسي کتاب د (۱۲٦) مخ مثال پرتخته داسې حل کړئ ترڅو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري. او د مثالوتوپه حلولو کې زده کوونکوته هم برخه ورکړئ يعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړی او د قناعت وړ ځوابوته ترلاسه کړئ.<br>– زده کوونکي په ډلو وويشئ او د درسي کتاب د (۱۲٦) مخ فعاليت دوي ته ورکړئ ترڅو يو د بل په مشوره يې حل کړي.<br>د ډلو څخه څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ايزکار کې برخه ولري.<br>– د ډله ايزکار په پای کې د ډلونماينده ګان راوغواړئ ترڅوپه خپل وارسره د تختی پرمخ سرته رسولی فعاليت نوروته توضيح کړي. | – زده کوونکي له سلام اچولو، احوال پوښتنې څخه خوښــېږي<br>– زده کوونکي د ښوونکي هرې پوښتنې ته ځواب وائي.<br>– زده کوونکي د مثال په حلولو کې ونډه اخلی او د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>– په ډله ايزکار کې فعاله ونډه اخلي او د پوښتنو د حلولو په وخت کې خپل نظرونه له نورو سره شريکوي.<br>– زده کوونکی د نورو ډلو د نماينده ګانو د پوښتني حلولوته هم پاملرنه کوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقه | **ارزونه:**<br>• څوک کولای شي چې د مایعاتو د واحد اجزا او اضعافو یو پر بل باندې تبدیل کړی ؟<br>• څوک ۵ لیتره په دیسي لیتر بدلولای شي؟<br>• که چیري د لیتر واحدات ونه پېژنو نو له کومو ستونزو سره مخامخ کیږو؟ |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې د ظرفیت د اندازه کولو واحد لیتر دی چې اجزاء او اضعاف لري.<br>د لیتر اجزا:<br>۱ لیتر مساوی دی له: ۱۰ دیسي لیتر، ۱۰۰ سانتي لیتر، ۱۰۰۰ ملي لیتر<br>دلیتر اضعاف: ۱۰ لیتر = ۱ دیکا لیتر، ۱۰۰ لیتر = ۱ هکتو لیتر، ۱۰۰۰ لیتر = ۱ کیلو لیتر |

کورنۍ دنده :

درسی کتاب د ۱۲۷ مخ د کورنۍ دنده سوالونه په خپل کتابچو کې نقل او بیا حل کړئ.

**د فعالیت حل**

۱۰ لیتره ............ ۱۰۰ .......... دیسي لیتره کیږي.
۷ لیتره.............. ۷۰۰ ......... سانتي لیتره کیږي.
۳ لیتره............... ۳۰۰۰ ........ ملي لیتره کیږي.
۸ دیکا لیتره.......... ۸۰...... لیتره کیږي.
۲ هکتو لیتره......... ۶۰۰...... لیتره کیږي.
۴ کیلولیتره......... ۴۰۰۰........ لیتره کیږي.

**په خپلو کتابچو کې یې حل کړئ**

**حل**: ۱۱ لیتره څو ملي لیتره کیږي ؟

ملی لیتر ۱۱۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۱۱

- ۲۵ لیتره څو سانتي لیتره کیږي ؟

سانتی لیتر ۲۵۰۰ = ۱۰۰ × ۲۵

- ۴۰ لیتره څو دیسي لیتره کیږي ؟

دیسی لیتر ۴۰۰ = ۱۰ × ۴۰

**د کورنۍ دندې حل** :

- ۲ کیلو لیتر څو لیتره کیږي؟

**لیتر ۲۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۲**

- **۵** هکتو لیتر څو لیتره کیږي؟

**لیتر ۵۰۰ = ۱۰۰ × ۵**

- ۷ دیکا لیتر څو لیتره کیږي؟

لیتر ۷۰ = ۱۰ × ۷

**دری څلوېښتم لوست**

## سرلیک: د وخت (زمان) د مقیاس واحد

**مخ: ۱۲۸**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې:**

- پوهنیزي : زده کوونکي د وخت د مقیاس د واحد اجزاء وپیژني.
- مهارتی : زده کوونکي د وخت د مقیاس د واحد په واسطه وخت معلوم کړای شي.
- ذهنیتی : زده کوونکي د د وخت د مقیاس د واحد په واسطه د وخت له معلومولو څخه خوند واخلی.

**نوي اصطلاحات:** واحد، مقیاس، زمان، پېړی.

**د تدریس میتود:** فعاله زده کړه (ګروپي کار، انفرادي کار، سؤال او جواب)

**د زده کړې مرستندوی توکي:** د وخت د واحد د اجزاو او اضعاف د دیاګرام چارت.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>– له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br><br>• څه فکر کوئ د وخت دقیق پوهېدل ارزښت لري؟<br>• ستاسو په فکر وخت د څه شي په واسطه اندازه کیږي؟<br><br>– د درسي د درسی کتاب ۱۲۸ مخ په تخته باندی زده کوونکو ته تشریح کړئ<br><br>– درسی کتاب د (۱۲۹) مخ مثال د تختي پرمخ په دې ډول حل کړئ تر څو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې ترلاسه کړئ.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د ( ۱۲۹ ) مخ فعالیت ورته ورکړئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړي. د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې فعاله ونډه واخلي. | – زده کوونکي په سلام او احوال پوښتنې سره خوشحالیږي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځواب ورکوي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسی<br><br>– زده کوونکې د مثال په حلولو کې ونډه واخلی او ښوونکي پوشتنوته ځوابونه ورکوي.<br><br>– زده کوونکی په ډلیزکار فعاله ونډه اخلی او خپل نظریات نورو سره شریک کوی. |

| وخت | |
|---|---|
| ۵<br>دقیقي | **ارزونه:**<br>• څوک د وخت واحد معرفي کولای شي؟<br>• څوک د وخت واحد د اجزاوو او اضعافو نومونه اخیستلای شي؟<br>• که چېرې د وخت د مقیاس اجزاء او اضعاف ونه پېژونو له کومو ستونزو سره مخامخ کیږو؟ |
| ۵<br>دقیقي | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې د وخت اجزاوي عبارت دي له:<br><br>د وخت د واحد اجزاوي: ثانیه، دقیقه، ساعت<br><br>د وخت د واحد اضعاف: شپه او ورځ، اونۍ، میاشت، کال، قرن (پېړۍ)<br><br>که چیري وغواړو چې کال په ورځو تبدیل کړو داسي عمل کوو. یو کال ۱۲ میاشتي او یوه میاشت ۳۰ ورځي ده نو داسې لیکو: ۳۶۰ ورځي = ۳۰ × ۱۲ |

**کورنۍ دنده :**

- یو کال مساوي دی په.............؟............. میاشتو.
- یوه میاشت مساوي ده په...........؟.............. اونیو.
- یوه اونۍ مساوي ده په..............؟............. ورځو.

## د فعالیت حل

یوه شپه او ورځ مساوي ده له .......۲٤....... ساعتونو سره
یوه ساعت مساوي دی له ..........٦۰.......... دقیقو سره
یوه دقیقه مساوي ده له .............٦۰........ ثانیو سره

## په خپلو کتابچو کې یې حل کړئ.

- ۵ دقیقې څو ثانیې کیږي؟
ثانیه ۳۰۰ = ٦۰ × ۵

- ۷ ساعتونه څو دقیقې کیږي؟
دقیقه ٤۲۰ = ٦۰ × ۷

- ٤ شپې او ورځې څو ساعتونه کیږي
ساعت ۹٦ = ۲٤ × ٤

## دکورنۍ دندې حل

لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

- یو کال مساوي دی په.................۱۲.......... میاشتو.
- یوه میاشت مساوي ده په.............٤............... اونیو.
- یوه اونۍ مساوي ده په............. ..۷............ ورځو.

## د پوښتنو حل

- یو ساعت څو ثانیې کېږي؟ ۱ ساعت = ۳٦۰۰ ثانیه
- یو کال څو ورځې کېږي؟ مساوی دي
- یو کال څو اونۍ کېږي؟ مساوی دي
- یوه پېړۍ څو میاشتې کېږي؟ ۱۲۰۰ میاشتي ده

دری څلوېښتم لوست

## سرلیک: د وخت (زمان) د مقیاس واحد او دهغه تبدیلول په اجزا اواضعاف باندی

**مخ: ۱۳۰**

**وخت: ۱ درسي ساعتونه (۴۵ دقیقه یي)**

**موخې:**

- پوهنيزي : زده کوونکي د وخت (زمان ) د مقیاس د واحد د اجزاء او اضعاف یو پر بل د تبدیلولو په مفهوم پوه شي.
- مهارتی : زده کوونکي د وخت د مقیاس د واحد اجزاء او اضعاف یو پر بل تبدیل کړای شی.
- ذهنیتی : زده کوونکي د وخت د واحد د اجزاوو او اضعافو په یو بل باندې له تبدیلولو څخه خوند واخلی.

**نوي اصطلاحات:** واحد، مقیاس، زمان، پېړی.

**د تدریس میتود:** فعاله زده کړه (ګروپي کار، انفرادي کار، پوښتنه او ځوابونه )

**د زده کړې توکي:** درسی کتاب ، تخته ، تباشیر

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | –د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو څخه وروسته :<br>له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>• آیا کولای شو چې د وخت د واحد اجزا او اضعاف یو پر بل باندې واړوو؟<br>• که دا کار ونشو کولای څه تاوان لري ؟<br><br>– د درسی کتاب (۱۳۱) مخ لومړی او دویم مثال د تختې پرمخ په دې ډول حل کړئ تر څو زده کوونکي په کې فعاله ونډه ولري یعنی په هره برخه کې له زده کوونکو پوښتنه وکړئ او د قناعت وړ ځوابونه ترې ترلاسه کړئ.<br><br>– زده کوونکي په ډلو وویشئ او د درسي کتاب د ( ۱۳۲ ) مخ فعالیت ورته ورکړئ ترڅو یو د بل په مشوره یې حل کړي. د ډله ایزکار په وخت کې له ډلو څارنه وکړئ ترڅو ټول زده کوونکي په ډله ایزکار کې فعاله ونډه واخلي. | –زده کوونکي په سلام او احوال پوښتنې سره خوشحالیږي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځواب ورکوي.<br><br>– زده کوونکي د مثال په حلولو کې ونده واخلی او د ښوونکي ځوابونه ورکوي<br><br>– زده کوونکی په ډله ایزکار فعاله ونډه اخلی او خپل نظرونه نورو سره شریکوي. |

| | |
|---|---|
| ۵ دقیقي | **ارزونه:**<br>• څوک د واحد د اجزاوو او اضعافو نومونه اخیستلای شي؟<br>• څوک ۳ ساعته په دقیقه اړولی شي؟<br>• څوک ۳٦۰ ورځي په میاشتو تبدیلولی شي؟<br>• که چېرې د وخت د مقیاس اجزاء او اضعاف ونه پېژونو له څه ستونزو سره مخامخ کیږو؟ |
| ۵ دقیقي | **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په دې لوست کې زده کړل چې د وخت اجزاوي عبارت دي له:<br>د وخت د واحد اجزاوي: ثانیه، دقیقه، ساعت<br>د وخت د واحد اضعاف: شپه او ورځ، اونۍ، میاشت، کال، قرن (پېړۍ)<br>که چیري وغواړو چې کال په ورځو تبدیل کړو داسي عمل کوو. یو کال ۱۲ میاشتي او یوه میاشت ۳۰ ورځي ده نو داسې لیکو: ۳٦۰ ورځي = ۳۰ × ۱۲ |

**کورنۍ دنده :**

د درسی کتاب ۱۳۲ کورنۍ دنده په خپل کتابچو کې حل کړي

**د فعالیت حل:**

د لاندې جملو تش ځایونه پر مناسبو عددونو سره ډک کړئ:

یو ساعت له..........٦٠..........دقیقو سره مساوي دی.

یوه دقیقه له............٦٠.......... ثانیو سره مساوي ده.

یوه شپه او یوه ورځ له.....٢٤.......... ساعتونو سره مساوي ده.

یو کال له ..........؟.............. اونیو سره مساوي دی.

٣١ کال ...............٣٧٢........ میاشتو سره مساوي دی.

**د کورنۍ دندې حل**

- یو ساعت څو ثانیې کېږي؟
  ثانیه ٣٦٠٠ = ٦٠ × ٦٠

- یو کال څو اونۍ کېږي.
  **مساوی دی ٥٢**

**د پوښتنې حل**

- یو ساعت څو ثانیې کېږي؟ ١ ساعت = ٣٦٠٠ ثانیه
- یو کال څو ورځې کېږي؟ مساوی دی په ٣٦٥
- یوه پېړۍ څو میاشتې کېږي؟ ١٢٠٠

# د پنځم ټولګي د پای د اضافي پوښتنو حل

| ځوابونه | پوښتنې |
|---|---|
| د اوږدوالي واحد متر دی.<br>۳۰ ديسي متره مساوي دې له ۳ متره سره | ۱) د اوږدوالي واحد څه شی دی؟ نوم يې واخلئ.<br>۳۰ ديسي متره له ............ متره سره مساوي دي |
| ۲۰۰۰ ملي متره مساوی دي له ۲ متره سره | ۲) ۲۰۰۰ ملي متره له ....... متره سره مساوي دي |
| سانتی متر ۴۰۰ = ۱۰۰ × ۴ | ۳) ۴ متره په سانتي متر تبديل کړئ. |
| متر ۸۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۸ | ۴) ۸ کيلومتره څو متره کيږي؟ |
| د کتلي واحد ګرام دی. | ۵) د کتلې د واحد نوم واخلئ. |
| ګرام ۶ = ۱۰ ÷ ۶۰ | ۶) ۶۰ ديسي ګرام څو ګرامه کيږي؟ |
| ګرام ۸ = ۱۰۰۰ ÷ ۸۰۰۰ | ۷) ۸۰۰۰ ملي ګرامه څو ګرامه کيږي؟ |
| ملي ګرام ۱۶۰۰۰ = ۱۰۰۰ × ۱۶ | ۸) ۱۶ ګرامه څو ملي ګرامه کيږئ؟ |
| ديسي ګرام ۶۵۰ = ۱۰ × ۶۵ | ۹) ۶۵ ګرامه څو ديسي ګرامه کيږي؟ |
| د ظرفيت واحد ليتردی | ۱۰) د ظرفيت واحد څه شی دی؟ |
| ليتر ۶ = ۱۰ ÷ ۶۰ | ۱۱) ۶۰ ديسي ليتره څو ليتره کيږي؟ |
| ليتر ۴ = ۱۰۰ ÷ ۴۰۰ | ۱۲) ۴۰۰ سانتي ليتره څو ليتره کيږي؟ |
| وخت په ساعت اندازه کيږي. | ۱۳) وخت په څه شي اندازه کيږي نوم يې واخلئ؟ |
| يوکال ۱۲ مياشتي دي | ۱۴) يو کال څو مياشتي کيږي؟ |
| يوه مياشت تقريبا مساوي ده له ۴ اونيو سره | ۱۵) يوه مياشت څو اونۍ کيږي؟ |